


دویم چاپ
له نویو زیاتونو سره

# دامونه او داني

مولوي محمد یونس خالص

شعري ټولګه

# دامونه او داني

## (شعري ټولګه)

مولوي محمد یونس خالص

۱۳۹۳لمریز

بسم الله الرحمن الرحيم

# دامونه او دانې

ويناوال

**مولوي محمد يونس خالص**

مهتمم

**عبدالهادي ملاخېل**

کمپوزر

**حبيب الله اماني**

خپرندوی

**احسان خپروندیه ټولنه**

**ihsanpa@yahoo.com**

لومړی چاپ

**وری/ ۱۳۸۱ لمريز**

دويم چاپ

**غبرگولی/ ۱۳۹۳ لمريز**

چاپ شمېر

**۱۰۰۰ ټوکه**

د پښتی ډيزاين

**سپين سهار**

چاپځی

**د دانش خپرندويې ټولنې تخنيکي څانگه- پېښور**

**danish2k2000@yahoo.com**

# سریزه

بسم الله الرحمن الرحیم

محترمو لوستونکو!

السلام علیکم و رحمة الله و برکاته

تاسو ته به معلومه وي، چې د راپېښې ناروغۍ له کبله صحت راته د لیک او لوست اجازه نه راکوي او په تېره بیا په داسې یوه کتاب، چې زما د اشعارو مجموعه وي، ځکه د لیکوالۍ اصول به هم دا نه ایجابوي، چې زه پرې سریزه ولیکم، خو د ګران دوست ښاغلي عبدالهادي ملاخېل صاحب درنښت او ګرانښت زه دې ته وهڅولم، چې حتماً یې باید غوښتنې ته مثبت ځواب ووایم او لږ څه پرې ولیکم.

له ټولو دمخه خو د احسان خپرندویې ټولنې جوړول یو نېک اقدام او د ګران ملت د باسواده طبقې د اذهانو د تنویر یوه ښه وسیله او په فرهنګي ډګر کې د افغانانو لپاره د یادونې وړ پرمختګ بولم. که زمونږ ټول لیکوالان او د قلم خاوندان د مسئوولیت احساس وکړي او لاس په کار پورې کړي، نو یقیني ده چې ډېرې نېکې او له زړې ډکې پایلې به له ځانه سره راوړي.

خدای جل جلاله دې وکړي، چې ملاخېل صاحب پخپل دغه لوی کار کې په اسلام دوستو او وطن مینو قلموالو اعتماد وکړي او که انتقاد ومني، مشوره واوري او نیت یې خدمت وي، نو نه یوازې دوی، بلکې ډېر افغانان به یې له دې کرلي فصل څخه حاصل واخلي.

زه د دغه کتاب په اړه څه مشخص لیکل نه غواړم، لوستونکی پوه شه او کتاب یې، خو له ګران ملاخېل صاحب څخه مننه کوم، چې زیار یې کښلی او یو څه یې لاس ته راوړي، خو دا به د دې مانا ونه لري، چې زما ټول شعرونه به همدا وي، که په دې سیند کې لږې نورې غوټې ووهي، نو ښایي نور څه هم لاس ته ورشي.

په آخر کې بیا هم ښاغلي ملاخېل صاحب او همکارانو ته یې له خدایه توفیق غواړم او له ټولو لوستونکو څخه د ښېنې د دعا هیله لرم.

والسلام

ستاسې ورور

مولوي محمد یونس خالص

۲۷-۱-۱۳۸۱ هـ ش

یونیورسټي ټاون- پېښور

# دامونه او دانو ته یوه کتنه

په بزم و رزم باندې چې راشي
د توتي ژبه، زړه د پلنګ لري
(...)

په ۱۳۶۸ ل کال چې د جهادي بهیر وتلي لیکوال او څېړونکي ښاغلي شهرت ننګیال وینه په قلم کې نومې تذکره د جهادي څېړنو مرکز له خوا خپره کړه، نو د هجرت په چاپېریال کې یې دیوې غنیمت تذکرې په توګه ښه تود هر کلي وشو، خو نقادانو ته بیا د ادبي تذکرې د ښوولیو آرونو او معیارونو له مخې ادبي تذکره ښکاره نه شوه، ځکه د ادبي تذکرې کچ مېچ دا ښوول شوی او منل شوی دی، چې په ادبي تذکره کې یوازې د هغو لیکوالو او شاعرانو پر ژوند او افکارو باندې مفصله څېړنه کېږي، چې دیوه ادبي سبک یا ادبي مکتب بنسټګر یا غوره استازی وي، پر دې سربېره ځینې هغه لیکوال او شاعران هم د ادبي تذکرې تر وزرو لاندې را تلای شي، چې که د کوم ادبي او ښتون ښکارندوی هم نه وي، خو د خپل هنري کمال له مخې په ادبي تذکرو کې د ځلونې حق او ځای لري.
د ښاغلي ننګیال په دغه تذکره کې هم تر ادبي ارزښت زیات سیاسي، جهادي او قیادي ارزښتونو ته ارزښت ورکړی شوی و، داسې چې په تذکره کې له ټولټال ۷۷ کسو ځنې یوازې ۵۴ کسو په یوه نه یوه بڼه له ادب سره تړاو درلود. البته د همدغو جهادي قیادي معیارونو په لړ کې یوازې یو

مولوي محمد یونس خالص هغه څوک و، چې د خپلې ادبي مخينې «سابقه» له مخې يې د ننګيال په تذکره کې پر ګډون نيوکه ونه شوه، ځکه په دغه تذکره کې د خالص بابا په څېر قلموالو ګډون پر ده احسان نه، بلکې د ده حق و او بيا پر داسې مهال، چې که په اويا کلنۍ کې يې هم په زړو هډوکيو د خپلې خاورې او خپلې ګروهې «عقيدې» د دښمن پر وړاندې خپله تېره توره چلوله، نو د قلم په ډګر کې يې پخپل ويارلي قلم کې د زړه وينه څڅوله او د خپل مېړني او اتل اولس په برخليک تاکنه کې يې ترې کار اخيست.

د علامه اقبال (رح) وينا رشتيا ده، چې وايي:

«اولسونه د شاعر په ضمير کې زېږي، خو د سياستوالو په لاس مري»

خالص بابا هم له ځايه شاعر و، خو د خپلې ټولنې اړتيا او غوښتنې سياست غاړې ته ور واچاوه، ګنې دا خو هغه شاعر و، چې د شعر په زور يې هم د خپلواکۍ هوسۍ د بلوسګر ښکاري له منګولو را خپلولای شوه. هغه دا کار د خپل شعر په سحر هم کولای شو، ځکه د هغه په هنر کې چې کومه ښکلا، ځلا او پياوړتيا وه، هغه له دغو تاوجنو او ويرجنو حالاتو نه څو لسيزې وړاندې دې هنرپوه اولس پېژندلې وه، د دې هنرمېنې ټولنې هر هنر مَېن وګړي د ده له خولې د ده رندي او د ده د شعر دا رنګيني اورېدلې وه چې:

ماته مې کاسه شوه په شرابو مسته مځکه شوه

خوارشې اې کولاله له دې ماتو کنډولو سره

کابل ۱۳۳۸ وږی

خالص صاحب که د خپلې خاورې او عقيدې د ښمن ته د خپلې تورې ځلا وښوده او پر دښمن يې د خپلې تورې زور ومانه، نو د هغه د شعر ښکلې ملکې لا وختي د هنرمنو زړونو پر هېواد واکمني چلولې ده.

دا وخت چې خالص بابا د خپل وياړلي ژوندانه پر داسې مورګه ولاړ دی، چې د هنري رنګينو د هستونې تمه ترې نه بويه، سملاسي د ده د نمانځنې په

پارد ده هغه درې جلا جلا خپرې شوې کوچنۍ ټولګې په دې هيله ګډلې وړاندې کول، هم يو بختور بنوګڼ «فال» دی، تر څو چې يې په هېوادنيو او هجري مطبوعاتو کې خواره واره شعرونه تر لاسه کېږي، دا په لاس کې وسله هم د ذوقونو موخه نښه کولای او شوقونه پارولای شي.

زه د دې ګډلې ټولګې د بيا وړاندې کولو او خپراوي په نوښت احسان خپرندويه ټولنه بختوره بولم او د دې ټولګې څښتن ته د ده د سپېڅلي هنر د ازربنت په پار، د ده د روغمن او پتمن ژوند لپاره د ستر څښتن درشل ته لاسونه لپه کوم.

ځلانده دې وي د خالص بابا د رزمي او بزمي ښکلا د اغېز لمر.

د خدای بنده دي

محمد آصف صميم

۱۳۸۱-۱-۳۰

# دانو او دامونو کار وکړ، خو...

دا دانې او دامونه د هغې علمي، ادبي، سياسي او جهادي ستړې د قلم له ځيګره څڅېدلې وينه ده، چې له څاڅکي څاڅکي يې د مينې خواږه او د حماسو پيغام څاڅي، چې د ټولنې پر وګړيو د خپلواکۍ ساتنې ژمنه وړشي. د شاعر سپېڅلې ګروهې ته د بلنې رنګ ښيي، د زړه د آواز په رسونه کې صراحت هم لري او ابهام او ايما هم، د کلو ګوزار (نقد) هم لري او کترې يا طنزونه هم.

دا دانې او دامونه زموږ د ملي او جهادي حماسو د ډګر د وتلي قلموال او توره وال د هنري ذوق د استازې او ښکارندويې شاعرۍ د سمندر هغه کوزه ده، چې ختېه او د عناصرو خاوره يې د هېواد د ملي خپلواکۍ او ديني شعور له خاورې را خيستل شوې، د ځيګر په وينو يې اغږلې، د ملي محروميتونو د آهونو په تناره کې يې پخه کړې او د خپلې رنځېدلې ټولنې د وګړيو د خمار د تندې خړوبونې په هيله يې د مستوونکي خوم په جامه وړاندې کړې ده او دا دامونه لکه جامونه د ټولنې بې درده او ناژمن ياغيان د ملي رسالت په نشه مستوي.

دامونه او دانې د غازي او شهيد قلموال اروابناد مولوي محمد يونس خالص د خيال او فکر د الوت او ثريا او ثرى د واټن رانغاړونکې پنځونه ده، چې لومړنۍ اوډلې او چاپي بڼه يې په ۱۳۸۱ ل کې د احسان خپرندويې ټولنې د ژمن او خوږ من څښتن ښاغلي عبدالهادي «ملاخېل» په هڅه او ملاتړ د مينه والو مخې ته کېښود شوه، د شعر او هنري رسالت، ژمنو

ځوانانو یې هرکلی وکړ.
خو زما له دې یوې ګیلې سره، چې دې څه کم یونیم سل مخه ټولګې د بیا چاپونې اړتیا ایله په دولسو کلو کې و انګېرل شوه؟.
په هر حال!
که د لوستوالو د «شپېتو برېښو کمی» دی، نو د ګران ملاخېل په څېر داسې مېنان او مینه وال هم شته، چې لوستوالو ته هم ددې دانو او دامونو نوې او زیاته شوې ټولګه وړاندې کوي او نالوستوالو ته هم د لوستو د بلنې ځولۍ غوړوي.
زه په تلو تلو کې خپلو هغو ځوانو هنرمېنو ته بلنه ورکوم، چې د خپلو هنرمنو ویاړلیو او ویاړڅلیو د هنر د پیغام د خوږو په څکلو، د مادي نړۍ ترخو لوګیو ترخې مرۍ یې د هنري ذوق په ګبین خوږې شي.

د خالص د سپېڅلي اروا د خوښنې په هیله

محمد آصف صمیم
۱۳۹۳-۴-۶

# رهبر خالص- نبي خېل شاعر

درانه او قدرمن ملا خېل صاحب!
مینه، سلامونه او دعاګانې!
روغتیا مې ښه نه ده، درملنې او طبي کتنو لپاره ولایت ته راغلی یم. په مرحوم خالص مې له دې ښه لیکنه ونشوای کولای، ډېره خواري مې وکړه، خو ونشوه- هغه لیکنه درلېږم- که خو ښه مو شوه، هغه ده، که نه ما به وبخښئ. لنډون یې ستا په خوښه.
الله تعالی دې پخپل حفظ او امان کې لره.
ننګیال

عجیبه سړی و، ملا و، مولوي و، د قرآن کریم حافظ و، سخت دریځه و، مجاهد و، قوماندان و، لېډر و، پخپله خبره ولاړ و، هو یې هو و، نه یې نه.
خو دغه ملا، مولوي حافظ او سخت دریځه، بوډا حضرت باز نازاوه، دا د حضرت باز د بېوسي، بې ارزی، خواری او پردېسی وختونه وو، خوله کنډاسه، اواز لړزاند، خو دې یوه ملا، مولوي، حافظ او سخت دریځه یې نازوو، د ژوند توښه یې وربرابروله، میاشت په میاشت، لکه د خپل دفتر

مامور، لکه د خپل سنګر مجاهد.

حضرت باز چا دفتر ته نه پرېښود، د کمشنرۍ په راشن او پنډغالو کې يې ځای نه و، ځکه چې ده کلونه د پښتونستان په پروګرام کې د درېيم مجلس تود ساتلی و.

خو دغه ملا، مولوي، حافظ او سخت دريځه يې له مرستې لاس نه شوای نيوی. د تنظيمونو، مجاهدينو، ملايانو، مولويانو، شېخانو او زاهدانو په ورانديې حضرت باز سندرغاړی و، ډم و، ګناهګار و، بې لارې و، خو دې ملا، مولوي، حافظ او سخت دريځه ته منلی و، ښاغلی و، افغان و، مهاجر و، د مرستې، خواخوږۍ او مينې وړ و.

ددې ملا، مولوي، حافظ او سخت دريځه به چې زړه ډک شو يوه باغي ياغي اخبارته يې مقالې کښلې، افغان مجاهد او ولسمل د بغاوت، تورونو، تومتونو سمبول ګرځېدلی و، د تنظيمونو ګډوډيو، د کمشنرۍ خپلسريو، د کابل رژيم ناخوالو، د شوروي تېري د ظلمونو ټولو پر ضد يې د بغاوت جنډه لکه کړې وه.

افغان مجاهد تور و، تومت و، بغاوت و، له چا سره به چې وليدل شو، د غضب او عذاب وربلل کېده، نور پرېږده د مجددي په دفتر کې هم د بنديزونو هتکړۍ ورته شرنګېدلې.

خو دا يو ملا، مولوي، رهبر، حافظ او سخت دريځه داسې و، چې دغه باغي ياغي اخبارته يې مقالې کښلې...

عجيبه سړی و، چې کوم تپل شوی تړون به رامنځته شو په جار به يې اعلان کړه، چې له دې تړون د وينو بوی راځي، بيا ځوک وو، چې هغه دې پرې لاسليک کړای شي.

وې «په افغانستان کې اور بل دی ځوک لمن ورته وهي، چې لا ژبغړانده شي، ځينې يې چې ظاهراً ګلولو ته راغونډ دي، ددې لپاره دي، چې په سکروټو يې د ځان لپاره پټيری پخې کړي، د افغانانو او افغانستان لپاره دا اور ځوک نه وژني» انساني کمزوري پخپل ځای، دی هم انسان و، انسان له

تېروتنو سره تړلې وي، دده خپل مجبوريتونه وو، خو دغو مجبوريتونو دده ذهن ضمير او ايمان ته کله هم د ورېښمو زندۍ نه شواى اچولى.

د غني او اجمل شعرونه يې خوښ وو، اجمل په کابل کې له هغه رژيم سره همغاړى و، چې خالص ورسره په توده معرکه کې کېوتى و، خو د اجمل شعرونه يې ستايل، د غني له شعرو يې خوند اخيست:

اجمل غوندې شاعر وايه چې څوک دى پښتنو کې
غني به څوک پيدا کړي ددې سيمې پر ګنو کې
همداسې اديبان لرو پرېمانه نور په دو کې
پښتون ته دښمنان ځکه خولې دي په اوبو کې
ترپايه

چې باچاخان په حق ورسېدزه يې وروغوښتم، چې له اړخه يې يوه اعلاميه مطبوعاتو ته ورکړم، د خواشينۍ او تسليت تر څنګ يې د تورخم ننګرهار په لار پرتو مجاهدينو غوښتي وو، چې باچاخان د جنازې په درناوي کې درى ورځې له هر ډول پوځي عملياتو ډډه وکړي. دده پخپل ليک دغې اعلاميې متن له ما سره خوندي دى.

سل کاله باچا خان وې چې شي سم دې پښتانه
خو دوى يې نصحيت يوه ذره هم نه مانه
د دوى د جفا غشي يې شول ښخ په لړمانه
ترې راغى مرور، وې چې دا نه دي پښتانه
ترپايه

يو وار پورته شو يوه اعلاميه يې خپره کړه، له روسانو يې د داود خان، تره کي او حفيظ الله امين د مرګ پوروغوښت.

تنظيمونه او جهادي مشران يې هک پک کړل، ويل خالص لېونى شوى، داود خان ګټي، ملحد تره کى ګټي، کاپر امين ګټي... خو خالص ويل دا زما

ملحد او کاپران دي، له دوی سره به مو ړ حساب کوو، په شورویانو یې نه وژنم، له شورویانو یې ګټم، داود خان ګټم، تره کی ګټم، امین ګټم. ویل خالص لېوني شوی، د کاپرانو په ننګه ولاړ دی...

دا منو چې قام خو دی یو جسم سره شلېږي نه
دا مشهور متل دی چې اوبه په ډانګ بېلېږي نه
لاس پښه چې ګنده شي نو دا جسم بیا رغېږي نه
بې له پرې کولو نه یې بله چاره کېږي نه
ترپایه

پرپخواني پاچا چې په روم کې د چاکو برید وشو، سخت دریځه خالص راولاړ شو اعلامیه یې خپره کړه، پرپاچا یې شوی برید وغانده.
خالص د یوه تنظیم مشر و، رهبر و، لیډر و، دده تنظیم له تولوغوره قوماندانان او جنګیالي لرل، د یوه تنظیم د مشر په توګه خالص وسلې، پیسې او شوتنیاوې لرلې، خو چې یو سهار به راپاڅېدې خالص به دې مخې ته ولاړ و، نه به رهبر و، نه د تنظیم مشر، یو دردمند افغان به دې لیده، یو مجاهد، یو کډوال، چې د تنظیمونو، رهبرانو او هغه مسلط حاکمیت پر وړاندې درېدلی و.
پر دغه ورځ به مولوي خالص، نبي خېل و، شاعر نبي خېل، لیکوال نبي خېل، په دغه ورځ به ده خپله له رهبر او لیډر سرټکاوه. لیډران او رهبران یې غندل، پردغه ورځ به خالص شاعرو، لیکوال و.

خالصه خیر دې غواړه چې شپې ورځې دې ترخېږي
چې غله شي مجاهد او رهبران شي کوڅه ډب
ترپایه

---

دغه مهال به خالص شاعر و، یاغي باغي شاعر، د لیډر، رهبر او هغو مسلطو سیاستونو مخالف شاعر.

ځان ساته نبي خپله چې تا هم په بده نه کړي
رهبر چې شي بې لارې رهبران وهي په[1] بده
ترپایه

مولوي خالص، قاطع، صریح، جدي، ان چې ضدی سړی و، له کمونستانو او روسانو سره په خپله جنګېده، یوازینی جهادي مشر و، چې په سنګره کې یې له دښمن سره د مخامخ جنګېدو تجربه لرله، عادي ژوند یې درلود، له درباري چاپېریاله بې نیازه و.

له دې سره خالص ظریف طبیعت درلود، ظریفانه مجلس یې کاوه:
د دویم واده له امله خپله له ټوکو، کترو، کنایو سره مخامخ شو، یو جهادي مشر ته خدای ورکړه، په هر مجلس کې به یې په دې اړه خالص ته خبره وراړوله، وایي چې یو وار خالص د مشرانو په کومه ناسته کې مخ ورواړاوه: هلکه! تاته یې ولې دومره زور درکړی، دومره خو زما هغه لومړنۍ مېرمن په خدای که پارېدلې وي...؟

خالص تظاهر نه کاوه، چې څه یې پر زړه وو، هغه یې پر خوله وو، د دین او قومیت ترمنځ یې د معتدل پیوستون دریځ لاره، چې متدین نېشنلېزم یې باله، «پښتون قام او د هغه وظیفه» کتابګوټی د خالص صاحب د همدغه فکري خوځښت هېنداره ده.

په ۱۳۷۰ لمریز کې د خالص یو شعر خپور شو، چې یوه نوې غوغا یې ګډه کړه، د شعر سرلیک «پوچ کارتوس» و.

چا ویل قوماندان عبدالحق ښیي، چا وي مولوي جلال الدین حقاني، د خالص دغه شعر ګڼو خپرونو چاپ کړ، د ټولو خولو ته ولوېد، ډېری د خپلو

(١) - «وهي په بده» شعر لومړی پلا په افغان مجاهد کې خپور شو، ما یې په لیکه پر مستعار «پاخون» نامه شعروو‌ایه، رفیع صاحب د سمون او پسرلي صاحب د جیحون په نامه استقبال کړ، دومره ومنل شو، چې مشاعره پرې جوړه شوه، په مجاهد ولس کې له پرله پسې خپرېدو وروسته افغان مجاهد اطلاعاتي مرکز په کتابي بڼه چاپ کړه.

مدعاوو د پخلي لپاره کاراوه، پوچ کارتوس یو متل وګرځېد، هر چا به چې له یار دوسته سرټکاوه، د «پوچ کارتوس» حواله یې ورکوله، خو هېڅا د خالص نښه نه شوای ښودلی.

حفیظ الله غښتلي له مولوي خالص سره د جلال اباد پند غالي په ختین کور کې مرکه لرله، ماورته د لوړ شعر په اړه د پوښتنې یادښت ورکړ.

غښتلي په مرکه کې هغه پوښتنه داسې راپورته کړې وه:

تاسې د پوچ کارتوس شعر چاته ویلی و، ځینې وایي مولوی حقاني ته مو ویلی، ځینې وایي حاجې عبدالحق ته، اوس خو هغه مهال تېر دی، هیله ده، چې په دې اړه هم څه ووایې؟

خالص: نه، مولوي صاحب حقاني خو زما سترګې دی، د سترګو تور مې دی، عبدالحق خو زما داسې دی لکه جزمې چې وي، عبدالحق خو له ماسره غټ شوی دی، حقاني صاحب هم له ما کشر دی، خو بس ملګري شوي یو، حقاني چې له ماسره ملګری شوی په مسلمانۍ راسره ملګری شوی، دا شعر هېڅکله د هغه په باره کې نه دی ویل شوی، له دوی دواړو سره هېڅ ارتباط نه لري.

غښتلي: نو دا شعر مو چا ته ویلی؟

خالص: دا زموږ یو خپل و، له موږ سره یې وضع خرابه کړه، ما موټر هم ورکړی و، هغه یې هم ورسره بوت، او ځان یې غیب کړ، زموږ په لیکو کې یې مشکلات پیدا کړل، دا شعر مې هغه ته ویلی.

غښتلي: نوم یې اخیستی شئ؟

خالص: نه.

هو! عجیبه سړی و، ملا و، مولوي و، حافظ و، سخت دریځه و.

د جمعې ورځ وه، لمانځه ته د پېښور پوهنتون اسلامیه کالج جومات ته راغی، نه باډیګارډان، نه ساتونکي، یو دی، یو یې موټروان.

له لمانځه وروسته چې ورسره مخامخ شوم، وې راځه چې ځو، چېرې مې و نه ویل موټر ته وختو، سیده د رسول امین دفتر ته ننوت.

ما ويل مناجات او خرابات همدې ته وايي، مولوي صاحب! تا خو به ويل چې پر امين جهاد کېږي، وې: اوس هم وايم، زه دې ته سوچ ورې يم، چې له مخ يې حلال کړو، که له څټ.

له استاد شپون سره يې اشنايي وه، له تورونو، تومتونو د شپون ملا کړې وه، خو ملا، مولوي، حافظ او سخت دريځه خالص ورسره پالله تر اخيره يې پالله، ښه په زغرده يې پالله.

...وې «خدای وهلی شپون ډېر شوخ دی، ورانې ورانې خبرې کوي، خدای دې ژوندی لري».

دغه سخت دريځه ملا، مولوي، حافظ، ليډر، رهبر، له خدای وهلي، شوخ، وران شپون سره انډيوالي پالله، دژوند دعا يې ورته کوله.

فضل من الله فضلي په ۱۳۶۸ لمريز کال پېښور ته راغی، دا هغه د سکرييستو د کډوالی مهال و، مجاهدينو لنډ مهاله حکومت اعلان کړی و، خالص د کورنيو چارو وزير و، فضلي يې سلاکار وټاکه، چا ورته کړه، دا خو د شئون اسلامي سرکاري ملا دی، سکرييست دی، تر پرونه يې په کابل کې دنده لرله، خالص ويل: زما اشنا دی.

خالص کله هم د تنظيم مشر، ليډر، رهبر نه برېښيده، پر ده د شاعری ناست پيريان د ليډری او رهبری دمونو، منترونو پانځولای شول، لاندېنی شعر دده شاعرانه رفعت ښه ښه څلولی.

پښتنه پېغله

هغه ده چې راغلـه ګرېوان څيری کـوي شور
خدای زده چې دا څوک ده او روانـه ده کـوم لـور
هاغه ده پښې تـورې سپينو اورو کې رادورمي
وه مـلګرو ګـوری چې راخېژي پـه پيچومـي
ترپايه

شاعر نبي خپل پر ليډر او رهبر خالص ډېر بر، ډېر اوچت و، له همدې ځايه وه، چې نبي خپل کله هم هغسې ليډر او رهبر ونه خوت، چې د واک لپاره هېواد او هېوادوال په سرو لمبو واړوي.
له شاعر د مينې او محبت تلوسه د دنيا هېڅ ځواک نه شي لوټلای، ځکه خو دده په يوه نيمګړې غزل کې لولو:

وسکونډه بانه چې مې تازه د زړه زخمونه شي
بيا چې پکې ياره جوړ د سرو وينو ډنډونه شي
راشه چې پر ځای د سپيلنو درته لوګی شمه
مات چې درقيب د بدو سترګو نظرونه شي

دغه ملا، مولوي، رهبر، حافظ او سخت دريځه د مجاهدينو د يوه پلاوي په مشرۍ متحده ايالاتو ته ولاړ، په سپينه ماڼۍ کې يې د امريکا له ولسمشر رونالډ ريګن سره وليدل، هغه يې اسلام ته وباله، زه په دې نه غږېږم، چې د خالص دغه غوښتنه او وړانديز څومره عملي او پرځای و؟ زه دده هغه ټکي را اخلم چې ددغې بلنې لپاره يې کارولي: «امريکا له افغانانو سره د شوروي پر ضد جهاد کې درنې مرستې کړې، افغانان د چا ښه نه شي هېرولی، د ښو بدل په ښو ورکوي، موږ اوس هم له شوروي سره په ډغره بوخت يوو، هېواد مو وران ويجاړ دی، کونډې، يتيمان را تر غاړې دي، بې وطنه يو، لاس مو تش دی. هغه څه چې موږ يې لرو او موږ ته ډېر ګران او لوړ دی هغه زموږ دين دی، موږ دغه ګران دين تاسې ته ستاسې د هغو ښو په بدل کې وړاندې کوو».
«وينه په قلم کې» مې د خالص صاحب ژوندليک کې لاسې داسې ټکي ځای کړل، چې که وکړای شم ويې پاروم، په حقيقت کې دده له غوسې او غبرګونو ما خوند اخيست، ډېره موده نه ورسره مخامخېدم، يو ځل چې له حقاني صاحب سره ناست و، زه داسې ناخبره وربرابر شوم، زړه مې و بېرته وګرځم، وېرېدم چې د حقاني صاحب په وړاندې به مې د يوې پيسې کړي، خو خالص

راغږ کړ، نه به نبسې....
ما وې خالص صاحب هغه د ګلو ګوزار وکړه.
ویل: ستا په ګېډیو کې له ګلونو اغزي زیات راوځي.
بیا یې کړه چېړې ورک یې، حقاني صاحب دې لکه چې له بدو سترګو پټ ساتي.
ما ویل ستا له وېرې د پېښوریانو په وینا مخروریم. ما چې د مرکې لپاره خپل ملګري درلېږلي وو، هغوی ته ستا یادونې نور هم ووېرولم، په خدای که مې د مخامخېدو زړه کولای شوای.
ما ویل خالص صاحب ستا د ېر رندانه عشقي شعرونه مې موندلي، داسې لیکنې مې ترلاسه کړې، چې که رابرسېره یې کړم د افغان ملتیانو لیډر دې ثابتولی شي.
نه یې یوه کړه نه بله، وې زه خو وم افغان ملتی، حقاني صاحب ورته کړه: اوس هم یې، که وې؟ وې اوس هم یم، خو دا چې ځانونه افغان ملتیان بولي، دوی افغان ملتیان نه دي.
وې ته داسې شعر ویلی شې؟

ممه ما نه دی لیدلی تته تا غوندې سړی
تته تا نه خبر نه یم چې سړی یې که مړی
تته عجیب سړی ممه ما سره سیالي کړې
ممه ما سره سیالي خو تته ته نه شې کوی

شهادت ته مې په یوه طنز کې مولوي صاحب خالص، حقاني صاحب او حاجي عبدالحق دری واړه سکوندلي وو - اوونۍ وروسته بشارت صاحب په تلیفون راته کړه چې د لیکنې په غبرګون کې دې په مستعار نامه یوه لیکنه رارسېدلې، لکه مولوي صاحب خپله لیکلې وي- څه پرې وکړو- ماوې ته یې راولېږه...
که ګورم ملاخیل صاحب کښلې. ورته کړه مې چاپ یې کړه، بنه یې لیکلي...

مجاهدین چې پر کابل ورشېوه او خپلمنځي جګړې ونښتې، لیډر او رهبر خالص بېرته نبي خیل شاعر شو ، نه جګړه، نه د اقتدار کومه منډه او تلوسه.
دغه وخت د نبي خیل شاعرانه احساس د لړم او مار تر سرلیک لاندې شعر کې ډیر ښه موندلی شو.
درانه صمیم، چې د خالص په شعري ټولګه «دامونه او دانې» کومه سریزه کښلې په سرکې یې د شاعر دا شعر را اخیستی.

په بزم رزم باندې چې راشي
د تـوتي ژبه، زړه د پلنګ لري

(دا رښتیا ده، چې ولسونه د شاعر په ضمیر کې زېږي، خو د سیاستوالو په لاس مري، خالص بابا له ځایه شاعر و، خو د خپلې ټولنې اړتیا او غوښتنې سیاست غارې ته وروا چاوه، ګني دا خو هغه شاعر و چې د شعر په زوریې هم د خپلو اکی هوسی د بلوسکر ښکاري له منګولو راخپلولای شو هغه دا کار د خپل شعر په سحر هم کولای شو، ځکه د هغه په هنر کې چې کومه ښکلا، ځلا او پیاوړتیا وه هغه له دغو تـاوجنو او ویرجنو حـالاتو نـه ځـو لسـیزې وړانـدې دې هنرپـوه ولس پېژنـدلې وه، ددې هنر مېنې ټـولنې هر هنر مین وګړي دده له خولې دده (دا) رندي او دده د شعر دا رنګیني اورېدلې وه:

ماته مې کاسه شوه په شرابو مسته ځمکه شوه
خـوار شي ای کولالـه لـه دې ماتـو کنډولو سـره

خالص بابا که د خپلې خاورې او عقیدې د ښمن ته د خپلې تورې ځلا وښوده او پر د ښمن یې د خپلې تـورې زور ومانه، نو د هغه شعر ښکلې ملکې لا وختي د هنرمنو زړونو پر هېواد واکمني چلولې ده....)
لیډر او رهبر خالص به چې نبي خېل شاعر شو ، نو د دانو شاو خوا یې ګنې لومې او دامونه هم لیدلای شوای، دا هغه دانې وې چې په تمه یې لیډران او رهبران په دامونو او لومو کې ښکېل پراته وو.

ونښلي مرغـه هـله پـه دام د صيادانـو کـې
کله چې دانې تـه شي روان پـه تـمه تـمه کـې

له خپلمنځي جګړو سره ليډر خالص، رهبر خالص هر څه ته شا کړه، يوازې د مينې محبت پيغام يې په شونډو خپور، د مينې ثنا يې په خوله غوړېدلې وه، د مينې او محبت پر قتل عام يې اوښکې تويولې:
مينې محبت چې کډې بار لـه دې دنيا نـه کړې
هيلـې ارزوګـانـې د بـشريـې پرېشانـه کـړې
جوړ لـه انسانانـو شـول مـاران چې مينه لاړلـه
نه، خير، انسانان شول شيطانان چې مينه لاړله
يـو تـر بـله خـوري لکه وحشيان چې مينه لاړله

دغه ملا، مولوي حافظ او سخت دريځه د طالبانو په واکمنۍ کې له ګوربت سره په مرکه کې ويل: کوم دولت چې تلويزيون نه لري، هغه له سره دولت نشو ګڼلای، ما او مولينا رشاد ته په دې اړه د مقالو په ليکلو ملايانو کاپر ويلي وو.
دغه ليډر، ملا، مولوي او سخت دريځه ويل: جهاد د همدغو رهبرانو له لاسه په غميزه واوښت، خدای دې هدايت ورته وکړي، که هدايت نه اخلي، خدايه ته يې هلاک کړې.
دا يـوازينې ليډر، يـوازينې مـلا، يـوازينې سخت دريځـه دی، چې ځان پړ بولي: «...زه هم مسوول يم، زه هم ګناهګار يم، زه هم ملت ته ملامت يم، چې هر وخت مې ملت محاکمه کوي حاضر يم، د همدې لپاره په دې کمپ کې پروت يم...».
وواياست، تاسې او خدای له بل ليډر، بل ملا، بل سخت دريځه مو داسې خبرې اورېدلې، د داسې مېړني اعتراف تصور مو کړی، بل کوم مولوي ځان ګناهګار ګڼلی، بل ليډر د ملت پر وړاندې ځان پړ بللی؟

دغه سخت دريځه، ملا، مولوي، حافظ او رهبر له پژواک سره اشنايي پالله، له هغه سره يې ليدل، د هغه د پوهې، تجربې او شخصيت معترف و، هغه وخت چې پاکستان پژواک رټلی او تنظيمونو ترټلی و، يو سخت دريځه ليډر يې په پوښتنه ځان ور ګاټه.

دا يوازينی يکي يو سخت دريځه ليډر و، چې لويه جرګه يې په اسلامي ملي دواړو رنګو رنګينه ګڼله.

ما دمخه وويل چې له خپلمنځي جګړو سره دغه سخت دريځه ليډر يوازې شاعر پاتې شو، د مينې شاعر، د امن شاعر، د ولس شاعر د خلکو شاعر.

د حقيقت، خيال او خوب ترمنځ شعر يې ښه بېلګه ده.

په بنډار او ليکنه کې د مولوي خالص د ظرافت ځانګړی انداز او خپله بڼه وه- طنز کې يې د خيال، فکر او منطق تومنه او خواږه دواړه اغېزلي شواى- د يادولو دا چې کله يې د دريځ صراحت او ځرګندتيا نشواى ورسره زمولېداى.

د ستوغې نيوکې، زيږه انتقاد او وچ غبرګون غشی نه، د مطايبو او لطايفو نشترې يې پامور ګاټه.

حکمتيار صاحب چې له کابله د ګليم جم ملېشو د ايستو پر دريځ ټينګ و، مولوي خالص د ملېشو د ايستو پر ځای د ملېشو د بې وسلې کولو خبره راپورته کړه- دده په وينا ملېشو د شر او فساد مخه له کابله په وتو نه، په بې وسلې کېدو نيول کېدای شواي- له کابله ايستل دا مانا چې بل ځای د خپلې ناراميو مخه ومومي...

مولوي خالص د مجاهدينو يوازينی ليډر و، چې خپل هېواد ته راولېږدېد، د ننګرهار د فارمونو په يوه خټين پنډغالي کې يې واړول، نه پيرې، نه ساتونکي، نه باډيګاردان.

زه او ولسمل يې ليدو ته ورغلو، ولسمل صاحب ورسره مرکه هم وکړه، روغتيا يې ښه نه وه، خو ذهن يې پر ځای و، نژدې د ټولو يادو ليکوالو او شاعرانو پوښتنه يې وکړه، ولسمل يې د عزيزالرحمن الفت له کورنۍ او

بچیانو وپوښت، د ډاکتر عبدالرحمن الفت پوښتنه یې وکړه.
ختمین کورو، دېوالونو یې درزونه کړي وو، خالص ویل په دې ونو بوټو بوختیم، مطالعه کوم، اخبارونه، مجلې، کتابونه لږ ډېر رارسېږي.
په زړه کې مې وګرځېدل دا هغه خالص دی، د یوه جهادي تنظیم مشر، یو رهبر، یو جنګیالی...؟
ده له دې ټول تنظیم او شوټتیاوو دومره څه ونه شوای سپمولی، چې د خپل ژوند وروستۍ شپې د هغې په تکیه سوکاله تېرې کړای شي؟
بیا مې د امریکایي لیکوال «جراون ډایک» یوه لیکنه سترګو ته ودرېده، خالص هماغه و، د خالص ژوند، هغه مهال هم د لیډر او تنظیم د مشر په کچه نه و، په لیډر خالص همېشه شاعر نبي خېل غالب او فاتح برېښیده:
جراون دایک لیکي:... موږ د بر تاکال پر واټ پلي روان وو، غوښتل مو یونس خالص وګورو، د یوې ودانۍ پر وراندې دوه ځوانان له کلاشینکوفونو سره ولاړ وو، په خیرن انګړ کې لس دولس تنه سیوري ته ناست وو، وراندې درې خونې وې، پر دوړنو زړو مېزونو کاغذونه، دوسیې او د لیکلو یو ماشین، د شنه چای له ډکو ګیلاسونو سره ایښي وو. زه یې یوې وړوکې خونې ته چې څو زړې چوکۍ پکې پرتې وې بوتلم، یونس خالص پر یوه زړه چوکۍ زاړه مېز ته ناست و، خړبخونه یې ره یې وه، سپین ږیرې ږیرې یې له ځانه تاو کړی و، اویا کلن برېښیده، ببرلاسونه یې پر مېز ایښي وو، زړې او بې بنده پلاستیکي چپلکې یې پښو وې، جرابې یې نه لرلې، په غاړه د مرمیو ډکه غاړه کۍ او څنګ ته تومانچه ځړېده، ده لیدل ماته په زړه پورې وو، همدا خره پره څېره له همغو دریو کوټو، له شوروي زبرځواک سره په ډغره وه.
جراون ډایک کاږي: «له نړیوال زبرځواک سره دغسې خرپړ پوځي قیادت او دغسې سیاسي ساده ګي د خپل پایښت او ازادۍ ډغره پر مخ بیایي، که دغه ډغره بریالۍ شي دا به د شلمې پېړۍ معجزه وګڼل شي».
پر افغانستان د امریکا له برید څه کم دوه کاله وروسته ولسمشر حامد

کرزي ننګرهار ته سفر درلود، په دغه سفر کې حامد کرزي د قوماندان عبدالحق پر قبر دعا وکړه او د مولوي خالص لیدو ته د فارمونو پنډغالي ته ولاړ.

د خبرونو له مخې چې خالص خورا کمزوری او ناروغ و، ولسمشر کرزي ترې دعا وغوښته؛ خالص بابا په لنډو ورغوته کړه: خدای دې له امریکایانو وژغوره.

د ۲۰۰۳ کال په دوبي کې د مولوي خالص د بې درکۍ خبر ورکړ شو، لږ وروسته د خالص له خوا د امریکایانو پر خلاف د جهاد فتوا اعلان شوه.

ننګرهاریانو ته سلام، چې د دغه مظلوم مشر د جنازې غایبانه لمونځ یې وکړ.

په خپلو شاعرانو او لیکوالو غږ کوم، چې د خپل دغه مظلوم شاعر او لیکوال په نمانځنه کې د هېواد په کچه سراسري ادبي غونډې جوړې کړي.

په ګوريي نور شه

چنان با نیک و بد خو کن که بعد از مردنت عرفی
مسلمانت به زمزم شوید و هندو بسوزانت

ننګیال

بسم الله الرحمن الرحيم

**الحمد لله والصلاة والسلام على رسول الله**
**و بعد! ان من البيان لسحرا و ان من الشعر لحكمة**

# د بابا شاعري

په دی کې شک نشته چې دافکارو او خوځښتونو په توجیه کې د شعر او نثر ځانګړی اثروي، نو ځکه هر فکري او سیاسي خوځښت د شعر او نثر له لارې د خپلو افکارو د توضیح او ترویج لپاره ځان اړین بولي، له همدې وجهې د شعر او نثر لپاره ځانګړې اداري او خپروني لري.

زمونږ په ګران هیواد کې له دې درې لسیزو راهیسې انقلابي شرائطو او د حق او باطل جګړې زمونږ د ټولنې په ادب ژور اثر کړی دی.

همدا لامل دی چې زمونږ د لیکوالو لیکنې او شعرونه حماسي او حرکي رنګ لري. په دې کې شک نشته چې لیکوال او شاعر تل له خپل ضمیر او ما حول څخه تاثر اخلي، دا چې زمونږ د ټولنې هر فرد په زړه زخمي او ماحول مو دانقلاب څپېړو وهلی او غمځن دی، نو ځکه زمونږ د ادب ژبه غمژنه او ویرژنه ده.

د محترم بابا رحمه الله شاعري که له یوې خوا د دوی د خفه زړه او حماسي ماحول ترجماني کوي او په بېلا بېلو وختونو کې مو له ټولنیزو حالاتو خبروي، خو له دې سره سره بیا ټولنه د سمون او د نیمګړتیا وو د پوره کولو په لور سوقوي او ددوی شعریو اخې افسوس، مایوسي او له حالاتو شکایت نه دی، بلکې د خپل دردېدلي ولس حوصله لوړوي او لوېدلو ته مورال ورکوي.

د محترم بابا رحمه الله اکثره شعرونه د کمیونستي رژیم پر خلاف د جهاد په دوره کې او له هغې د مخه لیکل شوي ځینې شعرونه دوی هغه مهال ویلي، چې غربي ښکېلاک لا د ېخوا ته د یرغل په تکل کې نه وو، خو دا چې زمونږ په ټولنه کې تېر تکرارېږي، نو ځکه د هغوی همغه شعرونه له اوسنیو حالاتو سره هم سمون خوري او همدا لامل دی چې د مینه والو مخې ته د شعرونو دا ټولګه د دوهم ځل لپاره کېښودل کېږي.

محترم ورور عبد الهادي ملاخېل صاحب چې د «دامونه او دانې» په نامه کوم کتاب چاپ کړی وو، د مینه والو په منځ کې داسې توزیع شو چې اوس په مشکله لاس ته راځي او ډېرو ورونو زمونږ څخه تکراراً د دې کتاب غوښتنه کړې، خو دا چې محترم ملاخېل صاحب یو ځل بیا هوډ کړی، چې دغه ټولګه له زیاتونو سره د دوهم ځل لپاره چاپ او ترتیب کړي دا یو ستر خدمت او زمونږ د ولس له غوښتنو سره مناسب اقدام دی او له محترم بابا رحمه الله سره د هغوی د مینې او اخلاص ښکارندویي کوي، نو موږ ته له خدایه اجر او توفیق غواړو او د دغه نېک اقدام قدرداني یې کوو.

مولوي انوار الحق مجاهد
د هجرت کور، شمشتو،
د خالص بابا فامیلي - پېښور
۲۶/ ۶/ ۲۰۱۴

# د دې کتاب په اړه

د هېواد د پیاوړي دیني، سیاسي، جهادي او ستر ادبي شخصیت محترم مولوي محمد یونس خالص، د ژوند او مبارزې په بېلا بېلو برخو په هر اړخیزه توګه ډېر څه ویل، لیکل او رښا اچول په یوه کتاب یا سریزه کې نه شي خلاصه کېدای. دوی چې یوازې په سیاسي او فرهنګي ډګر کې نږدې تیمه پېړۍ وړاندې د هېواد په مجلو، ورځپاڼو او جریدو کې څه لیکلي، یا یې ځانګړي آثار کښلي، هغه که نن هم په دقت سره مطالعه او د هغه مهال له حالاتو او شرایطو سره پرتله شي، نو په رښتیا سره چې خالص صاحب په خپل وخت کې ستر قلمي جهاد او ځلانده سیاسي مبارزه کړې ده. د قلم سپېڅلتیا یې ساتلې او نمانځلې، د حق په وړاندې یې طاقت ته سر نه دی ټیټ کړی، اسلامي او ملي ګټې یې تر هر څه لوړې بللې او د ظلم، بې دینۍ، خیانت، درغلیو او ناوړه کړو وړو په وړاندې چپ نه دی پاتې شوی، حق یې ویلی، حق یې لیکلی، حق یې ستایلی، حق یې غوښتلی او د حق دفاع یې کړې ده.

د خالص صاحب د شعر او نثر خوږه، ساده، په زړه پورې او عام فهمه ژبه د دوی ادبي ځانګړنې دي. لومړنی اثر یې په کال ۱۳۳۳ لمریز کې د الحاد او دهریت پر ضد د «دیني ملغلرې» په نامه کښلی، ګڼ نور تالیفونه او ژباړې هم لري، چې دوه کوچني منظوم اثرونه یې «خوږو ته خوږه او ترخو ته ترخه» او بله یې «تور زړو ته یم توره او سپین زړو ته یم سپینه» په نامه د اسلامي ګوند لخوا غالباً په ۱۳۵۷ او ۱۳۵۸ لمریز کال کې په نسبتاً عادي او ساده بڼه چاپ او خپاره شوي دي. که څه هم د چاپ دقیقه نېټه یې په دغو چاپ شویو آثارو کې نه ده لیکل شوې.

دغه راز د مولوي صاحب د وروستیو اشعارو درېیمه ټولګه په کال ۱۳۷۳ لمریز کې د ګران ورور عبد الصبور منصف لخوا د «ژوندیو اشعارو» په نامه د ده په شخصي لګښت چاپ او راوتلې ده، چې زیاتره

انتقادي او اصلاحي شعرونه پکې راټول شوي دي، چې پوچ کارتوس، لړم او مار، کوڅه ډب، د دله ګانو وخت دی، اوښان وهي په بډه او داسې نورو ځينو شعرونو يې ډېر شهرت موندلی دی. د جهاد او هجرت په وختونو او ان تر اوسه مې پوره کوښښ کړی، چې د خالص صاحب هره ليکنه شعر وي او که نثر، پيدا او له ځانه سره وساتم، چې له نېکه مرغه ځينې ناچاپه او چاپي ليکنې مې ساتلې هم دي. د اسلامي انقلاب تر بريالېتوب وروسته مې يوه هيله داوه، چې د دوی هغه ليکنې چې د ۱۳۳۰ لمريز کال نه تر ۱۳۵۲ لمريز کال پورې يې په پيام حق مجله، ګهيځ جريده، وړانګې، مېرمنو، کابل مجله او داسې نورو کې چاپ شوي، نقل او تر لاسه کړم. په کابل کې د خپل څو کلن شتون په وخت کې مې د کابل د عامه کتابتون له کليکسونو او ځينو نورو مراجعو نه هغه ډېر څه لاس ته راوړل، چې ما يې تکل کړی و، خو متاسفانه زما ټولې هيلې هغه وخت په نا هيلی بدلې شوې، چې دا او دې ته ورته نور ډېر مهم اسناد او کاغذونه مې د وروستيو تحولاتو په نتيجه کې له لاسه ورکړل، ما غوښتل چې د خالص صاحب نوي او زاړه ټول شعرونه او نثرونه به راټول او په جلا جلا توګه چاپ کړم، خو چې ونه شول، نو مې وپتيله چې که د لومړي ګام په توګه لږ تر لږه دغه چاپ شوي منظوم شعرونه په ترتيب سره راټول او ديوه کتاب په شکل په ښه کچه او ښه چاپ شي. نو هم به غنيمت وي، ځکه دغه لومړنی دوه شعري کتابچې خو يې دا اوس هم په نشت ځکه حساب دي، چې نه موندل کېږي، د دې لپاره چې د خالص صاحب د دغو شعرونو د ورکېدو او له منځه تللو مخه نيول شوې وي او د هېواد د نږدې درې لسيزو د پېښو او واقعاتو په اړه د دوی منظومې ويناوې، چې د دوی د ذهن او فکر ترجماني کوي، د تاريخي واقعاتو په توګه د آينده لپاره خوندي وساتل شي، نو دادی د «دامونه او دانې» په نوم يې د کتاب په بڼه چاپ ته سپارو.

اميد دی چې د ګرانو هېوادوالو او د شعر او ادب د مينه والو لپاره به ګټور واقع شي. هيله من يم چې د دوی پاتې شعرونه به هم که خدای جل جلاله کول

راټول او چاپ ته وسپارل شي.

احسان خپرندويه ټولنه په دې ویاړ او خوښي څرګندوي، چې د اسلامي انقلاب د ستر لاربنود او د هېواد د مشهور علمي او ادبي شخصیت ښاغلي (خالص بابا) دغه مجموعه په داسې حال کې چاپوي، چې له تېرو دوه نیمو لسیزو ګڼو او ګړندیو تحولاتو نه وروسته هم د دوی ډېر شعرونه هماغسې تازه، ژوندي، تلپاتې او با ارزښته دي. ما چې څو ورځې د مخه د دغه اقدام په اړه خالص صاحب ته احوال ولېږه او ترې ومې غوښتل، چې که ممکن وي په دې هکله یو څو کرښې ولیکي. خبر شوم چې خالص صاحب د درملنې لپاره پخپله پېښور ته تشریف راوړی. بله ورځ د دوی لیدو ته ورغلم، د احسان خپرندویې ټولنې په جوړېدو یې خوښي ښکاره کړه او له اوږدې او سختې ناروغۍ سره سره یې په ډېر زهیر ځان او کمزوریو ګوتو د خپل همېشني لطف او مهربانۍ له مخې څو ټکي ولیکل او د سریزې په دود یې راکړل.

خدای جل جلاله دې دوی ته روغتیا او ژوند ورکړي، د دوی دیني، جهادي او ستر علمي، ادبي خدمتونه د هېواد د تاریخ دیوې برخې په توګه د منني او ستاینې وړ دي. که ژوند وفا وکړه، نو ان شاالله په دې اړه به نور څه هم وایو او لیکو، خو اوس دا دی دا تاسې او دا د خالص صاحب شعرونه.

په احترام

عبدالهادي ملاخېل
د احسان خپرندويې ټولنې مشر
۲۰/ وری/ ۱۳۸۱
پېښور- پاکستان

# د دويم چاپ خبرې

د «دا مونه او دانې» په نامه د خالص بابا شعري ټولګه، له ژمنې سره سم د دويم چاپ له نويو زياتونو سره په داسې مهال چاپېږي، چې له يوې خوا د هېواد کړکيچ په يوه نازک او حساس پړاو کې دی او له بله پلوه د شعرونو ويناوال «مرحوم خالص بابا» هم د هجرت په ديار کې د هېواد د خپلواکۍ او سوکالۍ په ارمان له دې فاني نړۍ نه کډه بار او د ابدي ژوند په لور رهي شوی دی؛ خو هغه چې وايي، ځينې خلک مري؛ خو فکرونه، دريځونه، تخيلات او نقش يې ژوندي وي؛ ځکه نو د ارواښاد خالص فکر، ادبي ذوق، شعري پنځونې او انتقادي، اصلاحي، ټولنيزې، عشقي او حماسي ويناوې د وزن او الهام له مخې د پرون په څېر نن هم ژوندۍ او د کاڼي د کرښو په شان تلپاتې دي.

ارواښاد خالص که څه هم په هره برخه کې شعر ويلی، خو ځانګړو محيطي حالاتو ته په پام د شاعرۍ ډېره برخه يې انتقادي او اصلاحي بڼه لري او هغه د خادم صاحب خبره:

«رښتيا رښتيا به وايم، که وم وم که نه وم نه وم»

هرڅه يې چې د احساس له تله په خوله راغلي، هغه يې له تکلۍ، برګۍ، تصنّع، تکلّف او تظاهر پرته د خوشال بابا په وينا:

زه خوشال کمزوري نه يم چې به دار کړم
په ښکاره ناري وهم چې خوله يې راکړه

په ډانګ پيپلي ويلي.

د يادولو وړ ده چې «دامونه او دانې» عنوان مو د همدوی بېلا بېلو شعري بيتونو ته په کتنه، چې د روانو حالاتو ښه انځورګري پکې شوې، غوره کړی دی؛ لکه چې وايي:

ونښلي مرغه هله په دام د صيادانو کې
کله چې دانې ته شي روان په تمه تمه کې

او يا:

دامونه او دانې به راخپرې کړي کافران
چې وتړي له پښتونه پکې دا مظلوم افغان

په دويم چاپ کې زيات شوي شعرونه په کابل مجله، ګهيځ جريده، ننګرهار ورځپاڼه او داسې نورو چاپي رسنيو کې خپاره شوي. د مينې او عشق شعرونه يې هم شته، چې ان شاء الله په خپل وخت به دغه ټول رزمي او بزمي شعرونه راټول او «د خالص بابا شعري کليات» په نامه به چاپ شي.

د مرحوم خالص د شعر په منځپانګه «محتوا» او جولې «شکل» باندې که د ځوانو شاعرانو، اديبانو او ليکوالو له خوا رڼا واچول شي، نو نه يوازې زموږ د قلموالو ادبي تنده به پرې ماته شي؛ بلکې نوی نسل به مو هم له «خالص پېژندنې» سره لا ډېر اشنا شي.

په پای کې د محترم ورور محمد آصف صميم منننه، چې نه يوازې په دويم چاپ يې څه وليکل، بلکې د پروف لوستنې په زاره چاودي کار کې يې هم راسره مرسته وکړه، دغه راز دې د درانه ننګيال صاحب هم کور ودان وي،

چې له ناروغۍ سره سره يې زموږ په غوښتنه د خالص بابا په شاعرۍ ژوره، کره او په تول پوره هر اړخيزه، بلکې څېړنيزه ليکنه ولوروله.
او ګران وروږ انوارالحق «مجاهد» خو په دې هم د ستايلو وړ دی، چې د خپل ګران پلار «خالص بابا» پر شاعرۍ يې د ليکنې تر څنګ د دې کتاب د بيا چاپولو په اړه زما په هڅونه کې هم لوی لاس درلود.

په درنښت
عبدالهادي «ملاخېل»
د احسان خپرندويې ټولنې مشر
اسلام آباد - پاکستان
۲۴ غبرګولی - ۱۳۹۳

# ما ولوله اشنا

ما ولوله اشنا چې څومره ښکلې رساله یم
خوږو لره خوږه یم او ترخو لره ترخه یم

ما ولوله اشنا زه یوه کرښه د وحدت یم
سپېڅلي مسلمان ته ترانه د شجاعت یم
دعوت یم نصیحت یمه رڼا د حقیقت یم
رښتیا که درته وایم د زخمي زړونو شربت یم

ظالم ته بس د زهرو نه یوه ډکه پیاله یم
ما ولوله اشنا څومره عجیبه رساله یم

ما ولوله اشنا که حقیقت په سترګو وینې
زما په تورو کرښو کې پرتې دي د زړه وینې
په تورو توریو کې کوم خبرې سپینې
په سپینو پرېکومه د ظالمو د ښو سپینې

نو تورو ته یم توره او د سپینو فیصله یم
خوږو لره خوږه یم او ترخو لره ترخه یم

ما ولوله اشنا چې درته پته شي معلومه
نن ایښې ده کافرو مسلمان ته د چل لومه
معلوم شي د ظالمو حکومت به وي ترکومه؟
تر څو به د عقاب تمه کوي خلک له بومه؟

په داسې ناخبره مسلمانو حواله یم
ما ولوله اشنا چې څومره ښکلې رساله یم

ما ولوله اشنا د نبي خیل سره شه مل
یو لاس شئ په سره توره کړئ بهر له کوره غل
دوی غواړي چې اسلام کړي په مادي شکل بدل
قرآن کړي د ملي سرود د سیوري لاندې دل

د داسې منافقو رسوا کنه ښه وسله یم
یو بل ته مې خپره کړئ څومره ښکلې رساله یم

# حمد

پيل کومه په نامه د هغه ذات
چې بې مثله يې هم ذات دی هم صفات

نه يې ترهه له چا شي نه چاته هيله
هيله ترهه ترېنه کاندي کاينات

نه يې ضد شته، نه شريک، نه يې مثال شته
نه يې سيال شته، نه يې جنس، نه يې جهات

چې لويي يې د چا زړه کې شي دننه
هغه زړه کې اثر نه کا لات منات

که فرعون، که هامان دی که نمرود دی
کبرجن يې دي ترمخه واره مات

پخپل فضل يې بشر ته راليږلی
پاک قرآن د پاک نبي سره سوغات

«نبي خيله» د اسلام رسۍ کره کلکه
بې له دې نه چاره نشته د نجات

# نعت

خدايږو هغه سر خو په سرونو کې څه سر نه وي
کوم سر کې چې مينه د حضرت نبي سرور نه وي

وچوه هغه زړه چې پکې مينه د اسلام نه وي
خاورې هغه سر شه چې د پاک نبي غلام نه وي
ورک شه هغه قام چې ظالمان پکې بدنام نه وي
ورک شه هغه کلی چې جومات کې يې امام نه وي

ړنګ هغه ولس شه محمد (ص) يې چې رهبر نه وي
وران هغه وطن شه چې خبر په خيرو شر نه وي

مينه د الله د پاک نبي په اطاعت کې ده
خدايږو چې ښيګنه د الله په عبادت کې ده
اصل کې خبره، خو د زړه په محبت کې ده
نه په منډو ترړو، د سرو سپينو په دولت کې ده

لوړ دننه زړه کې د هر چا چې پيغمبر نه وي
خدای چې داسې زړه کې د ايمان تکی اثر نه وي

مینه محبت د محمد رسول الله سره
مینه ده پخپله د رحمن، رحیم، الله سره
زړه ته شي دننه بس په فضل د مولی سره
بې له دې به هېڅکله پیدا نه شي د چا سره

نه شې نا امیده، که دې زر که دې لښکر نه وي
هومره پام کوه چې د شیطان مل دې رهبر نه وي

ژاړه نبي خپله د احمد نبي روضې پسې
ژاړه په ژړا دې دواړه سترګې کړه ړندې پسې
غږ به شي محشر کې راشه دېر چې ژړېدې پسې
موړېږې په دیدن شه، چې دې اوښکې توېدې پسې

هلته به نصیب د هغه چا آب کوثر نه وي
زړه کې یې چې مینه د نبي خیرالبشر نه وي

## محمدي رنا

همدا سې په غفلت کې، سرګمه و بشر
شیطان و رانیولی دمادي ژوند ون په جال کې
اخته و قیل و قال کې
په شرو و سر شوی
بې سره و سر شوی
رښتیا دربدر شوی
بېوزلی خوار ځپلی به چا نه پرېښوو په پټ کې
په خپل کلي مالت کې

د زرو حکومت و
د زور څښتن او چت و
دولت به شرافت و
د تولو وتپ سوري چې چانه درلوده زر
د هر چا ونوکر
مادې ځني قربان وو
خواران وو، که خانان وو
بوتان، ځکه خدايان وو
پوهان ورته حيران وو زنګېده د فکر تال کې
اخته وو قيل و قال کې
بې حده وو ظلمونه
سودونه او رشوتونه
هم غلاوې هم قتلونه
يو تکی اثر نه و د پوهانو نصيحت کې
همداسې په غفلت کې
نه علم نه هنر و
نه کوم ديني رهبر و
هرځای کې شور و شر و
نړۍ کې معلوم نه و ترازو د خير و شر
سرګمه و بشر

دنیـــا کــې غلبلـــه وه
همداســې مرحلـــه وه
بېـغـږې د ژونــد چپـــه وه
مبعوث مولی کریم کړو، محمد په داسې حال کې
بشـر و پـه جنجـال کــې
مبعــوث چـې مصـطفی شـو
پـــه الا الله گویـــا شـــو
شــپه لاړه ســپین ســبا شـو
ګالـل یـې زحمتونـه د ړانده بشـر خـدمت کـې
چې و پـه ضـلالت کـې
مکــې کـلــې شــولو تنــګ
چـا کړلـو تـرې نـه ثـنـګ
چـا کــړو ورسـره جنــګ
طـایف تـه شـو روان د دوارو کونـو معتبـر
ســـرګمه و بشـــر
طـــایف کــې ظالمـــانو
غـتهـــانو او هلکـــانو
ویشـتلو بـــه پـــه کـــانو
ګبـر شوی پیغمبر و، د ناپوهو خلکو جال کې
اختـه و قیـل و قـال کـې

پېرۍ نــه وه لا تيــره
چــې ورکــه شــوله هيــره
پــاک ديــن شــولو برســېره
واړه وو کــه زاړه، مســلمانان شــول امنيــت کــې
پــه ښــه نــاز او نعمــت کــې

دنيــا کــې لــړ و بــر
چــې ځــوک و بختــور
احمــد يــې شــو رهبــر
ړونــد پــاتې شــو هغــه چــې چــا بــه نــه ليــدلو لمــر
ســرګمه دربــدر

ســلام ســلام دی
درود او احتـــــرام دی
زمـــونږ دغـــه پيغـــام دی
خاونــده تــه قــادر يــې رســوه يــې همــه حــال کــې
اختــه وقيــل وقــال کــې

د مينــې اورشــو بــل
بېلتــون ورســره مــل
زړګــي مــې وکــړ وجــل
شپې ورځې مې تېرېږي سيّدا ستا په فرقت کې
تکليف او په زحمت کې

بـې غمـه بـه شم هلـه
خوشـحاله يـو پـه سـله
چـې را کانـدي پخپلـه
يـو ځـاڅکې د کـوثر اوبـه، نبـي خيرالبشـر!
پـه ورځ کـې د محشـر
لـه بـدو بـه را بېـل شـې
د حـورو بـه امېـل شـې
ربـتيا بـه نبـي خېـل شـې
که برخه دې معلومه شي، حضور د ذوالجلال کې
د پـاک نبـي وصال کـې

# مختلف هدفونه

مونږ څه غواړو، دوی څه غواړي، پکار دي هر انسان ته
یو څه نه ځان خبر کړي، بیا را ودانګي میدان ته

دوی غواړي، چې بشر کاندي غلام د خپلې خېټې
مؤمن کاندي انسان، په لوړ مقام د خپلې خېټې
یو بل پسې دې ځي، خو په پیغام د خپلې خېټې
د هر چا نه لومړی به کړي، اکرام د خپلې خېټې

د ژوند اساس نو ځکه، اقتصاد ګڼي جهان ته
مادي نه ماورا، واړه تاوان ګڼي جهان ته

دوی غواړي په مادي لاره بشر کړي برابر
د خېټې مسئله بولي معیار د خیر و شر
لستوني یې چې غوړ وي، بس هغه دی معتبر
ملک دی هم رییس دی هم هغه ملي رهبر

دوی وايي اقتصاد دی، چې بشر بيايي اسمان ته
سند کې ګوتې نيسي امريکا، روس و جاپان ته

د دوی په خيال جنت ګونډې شي دلته کې موجود
دا خيال دی ورته پاتې، ميراث دی د نمرود
افغان اولسه! پوه شه دغه لار ده د داود
ملګري يې نو ځکه په لينن وايي درود

د ده سره که د رومي، نو شا ورته کړي قرآن ته
لاسونه د بيعت به ورکوي، غليم شيطان ته

د خېټې مسئله کې مونږ نه کوو نظر
توهين د بشر بولو چې د خېټې شي نوکر
دا حرص د نس او تن دی چې جنګېږي لروبر
مادي ژوند خو جهان کړ، سره وار دی په در

مادي خلک که ومنو، چې وخاته اسمان ته
د خدای د لارې خلک خو ختلي لامکان ته

منو مونږه د نس او هم د تن ضرورتونه
انسان لره پکار دي هم مادي څه قدرتونه

خو نه داسې چې هېر کړي، انساني واړه خویونه
مادي لاره کې خرڅ کړي، انساني عالي فکرونه

سر کېږدي په سجده غریب انسان، ملک او خان ته
ملت شي قرباني، د سیاسي خلکو ارمان ته

مونږ غواړو که خمتا وي، که اطلس، خو چې مستور شي
ډوډۍ وي، که وربشې، خو پوره یې چې ضرور شي
یو شانې عزتمن شي که یو خان بل یې مزدور شي
دانه چې په دولت لکه قارون، هسې مغرور شي

خو دا هله کېدی شي، چې سرښکته کړو ګرېوان ته
نور ختمه بندګي دیو انسان کړو بل انسان ته

دا هله شي کېدی چې ترازو د خیر و شر
فرمان د هغه چا کړو، چې پیدا یې کړو بشر
چې څوک په دغه لار ځي، هغه ومنو رهبر
غریب وي که سرداروي، که عسکر وي که افسر

خو لاس چیرې ور نه کړو، د نفاق په لار روان ته
چې سپک دي چا کتلي، نن پرون د خدای قرآن ته

دوی هغه او مونږ د غه لار نیولې ده پرې ځو
یو بل ته سره ناست یو، چې به کوم یو پرځوو
اشنایه! نیک او بد سړی به نن مونږ بیلوو
موقف دی کړه معلوم، چې خامخا دې خو ځوو

په غور کړه معلومې دغه دواړه لارې ځان ته
په هغه لاره درومه، چې یې ښه ګڼې جهان ته

که مونږ نه شو کاره، زمونږه مل غني سبحان دی
زمونږ په مقابل کې انسان څه، چې مات جهان دی
مرګی زمونږه فخر او نصرت مو ارمغان دی
دا زیری په مونږ کړی، پاک نبي اخر زمان دی

نو ځکه «نبي خیل» کوي اعلان هر مسلمان ته
د خدای په لار کې جنګ کوو، راودانګه میدان ته

# قربان شه له اسلامه

راودانګئ ځوانانو چې راغلی امتحان دی
هېواد کې موغزا ده، جنګ د کفر و د ايمان دی

د خدای او د شيطان بندګان نن سره بېلېږي
چې څوک دی مسلمان، څوک د نفاق په لار روان دی

د خولې په تش ايمان کې نجات نشته له عذابه
بېچ شوی دی هغه، چا چې ورکړی امتحان دی

بيرغ د پاک اسلام به شي اوچت تهوله نړۍ کې
نن بيا لکه پخوا متفق شوی مسلمان دی

قربان شه له اسلامه، چې قربان د رنه جهان شي
دا حکم معلوم شوی له حديث او له قرآن دی

یو څو ورځې د عیش یې که نصیب شي څه پروا که
انجام د کافرانو خو معلوم دی، چې نېران دی

روادنګئ پېښه نره او ځوانانو! نن مو وار دی
بیرغ زمونږه لاس کې د نبي اخر زمان دی

الحاد دی، که نفاق دی، د دې ټولو بوتان مات کړئ
باطل ته ځواب ورکړئ، که فرعون که هامان دی

چې سر او مال د خدای لاره کې نږدي څه مسلم دی
چې هر څه «نبي خبله» خدای ورکړي مسلمان دی

# اسلام اساسي قانون

د نبي خير الوری په لاره ځم به
په دې لاره مال او سر قربانوم به

په امید د شفاعت یې ژنده پایم
دې د پاره د اسلام خدمت کوم به

ملا تړلی به په دین له سره تېر شم
یا له تنه د دښمن سر بېلوم به

دین عزت، دین مې ناموس، دین مو وقار دی
خپل وقار عزت، په دین کې زیاتوم به

چې په دین د محمد (ص) یې لوبې کړي
د هغو خلکو په سر لوبې کوم به

خدای مې مل دی، پروا نه لرم له مرګه
شهید بڼه یم، نه په مړه تبه چې مرم به

د الله په نوم، بیرغ مې او چت کړی
د الله لپاره خلک پاروم به

یا به سم په سمه لاره دا چپیان شي
یا مصري، توره، په دوی کې چلوم به

نن د لرو نا اهلانو حکومت دی
حکومت د مسلمانو راولم به

اساسي قانون اسلام دی «نبي خیله!»
بل رژیم او بل آیین نه قبلوم به

# تمه

پاتې شي نهار، هغه انسان په تمه تمه کې
تل چې وي د بل د دسترخوان، په تمه تمه کې

مرسته خو منم، چې یو له بل سره کېدلی شي
نه داسې چې یو وي، د بل ځوان په تمه تمه کې

هېڅکله به خدای برو یو قدم په وړاندې وانخلي
اوسې چې کافر ته، مسلمان په تمه تمه کې

هغه مسلمان چې سر د خدای په لار کې نه ښندي
وي دی د مهدي اخر زمان، په تمه تمه کې

ونښلي مارغه هاله، په دام د صیادانو کې
کله چې دانې ته شي روان، په تمه تمه کې

تمه دې شي ورکه، چې سړی له کاره وباسي
پاتې شي اخر ترې، دا جهان په تمه تمه کې

پام کوه د تمې په کندو کې، چې کېنوځې
لاړ به شي اخر، درنه ایمان په تمه تمه کې

مونږ چې د عمل په ځای یو بل ته انتظار کوو
ګرځو به نو ځکه سرګردان په تمه تمه کې

او افغان اولسه! نور د دین خوا ته راو دانګه
نه شي نور د دغه خاندان، په تمه تمه کې

مینه به دې ورک لکه مجنون له کورو کلي کړي
وې که د لیلی عهد و پیمان په تمه تمه کې

بس کړه «نبي خیله» چې بل چا ته هیله ونه کړې
او سه خاص کرم ته، د سبحان په تمه تمه کې

## مسلمان امته

تول شئ نبي خېل، ای د نبي مسلم امته
را پاڅئ نا اهلان کړئ له چوکیو نه را ښکته

وتړئ ملا کلکه په رسۍ د توکل سره
مه پرېږدئ ظالم، چې مظلومان يې کړل بې پته

پورته کړئ نارې د تکبيرونو، پرې وروړ دانګئ
ښکته را ګوزار کړئ، چې څوک وينئ بې عفته

مه پرېږدئ هغه چې چاکې ننبه د کافر وينئ
غوا ړي په دې چارو، چې اسلام کړي بې عزته

څوک چې پاڅېدلي د هورا په اوازونو دي
داسې يې نابود کړئ چې معلومه يې نه شي پته

دا د اسلام خاوره د اسلام په توره وساتئ
توره د اسلام په نورو تورو کړئ اوچته

نه شئ پرې دو که، چې له هغه څخه به دا بنه وي
خر همغه خر دی خو بدله يې شوه کته

دې جهاد ته خاص، که د الله لپاره پورته شئ
زر به بريالي شئ، د اسلام له برکته

پاڅه «نبی خیله»، مسلمان در سره پاڅوه
ورکړئ خاينانو ته په سر حيدري لته

## داود وپېژنئ

څوک چې تمه له داوده کړي د ګټې
د حلوا په هیله، خوله کې منډي ختې

دا بې سترګو سترګور به هله پوه شي
چې په مرګ یې شي یوځلې، سترګې پټې

یا خو ونه د زقوم ده، دوزخي ته
یا مسلم ته د داود سترګې دي بټې

خو افغان ولس به هله په دې پوه شي
چې جارو کړي کورنۍ ترې غتې

چې له پت او له عفته ورته تېر دي
بس هغوی چوکۍ نیولې دي په متې

افغانان به غلامان کړي د کافرو
که یو کال نیم یې تګې شي نورې پتې

د رندو په څېر ګوزار د دین په سر کړي
لاس کې نه ګوري چې لوټې دي که ګټې

«نبي خېله!» د نبي له دینه ځار شه
که هیلمن یې د عقبا د ګټې وټې

## داود څوك دى؟

داسې بې همته يو انسان لکه داود چې دى
څوک به راته وښيي يو ځوان، لکه داود چې دى

وايي کلمه، پکې ملا تړ د کافرانو کړي
نشته بل دوه مخى يو انسان، لکه داود چې دى

لوبې چې په دين او په ناموس د افغانانو کړي
بل به پيدا نه شي يو افغان، لکه داود چې دى

جبر و تشدد کې له چنګېزه ځخه وړاندې دى
کبر کې لانه و هم هامان، لکه داود چې دى

چل دی که فرېب دی له داوده يې نشأت کړی
دې فن کې ماهر نه دی شيطان، لکه داود چې دی

څه شوې مسلمانه، څه غيرت همت لرې که نه؟
هومره خو غلط نه و «امان[1]» لکه داود چې دی

اصل کې دا کور اروپايي دی اروپاته ځي
غل پکې بل نشته هسې شان لکه داود چې دی

بس کړه «نبي خېله» د عمل ميدان ته ودانګه
ورک د استعمار کړه غلامان لکه داود چې دی

---

[1] غازي امان الله خان

# ويښ شئ

لر و بر مسلمانان کړي انتظار
چې افغان به د ښمنان کړي تار په تار

په عرب او عجم کې دي مسپلي[1]
چې يو ځلې شي ميدان ته راګوزار

بس د الله اکبر په چيغه پاځئ
د جهاد ډګر ته ځغلئ په تلوار

د الله په لار کې تېر له مال و سر دي
نه پروا کړي د غريب نه د سردار

نه پوهېږم چې نن ولې دي مړژواندي
ولې نه ماتوي لاس د ستمګار؟

---

۱- غښتلی، پياوړی، مزی (مز بوت)

ولې نه کوي غيرت په خوينډو ميندو؟
ولې نه ساتي عزت او خپل وقار؟

ولې نه کوي ملاتړ د دين د خلکو؟
د همزنګ کې چې بنديان دي ناقلار

«نبي خېله» دا ويده خلک را ويښ کړه
چېرې نه شي د دريانو همقطار

# انقلاب

په افغان اولس کې شور دی، را روان دی انقلاب
استعمار منلی نه شي، چې مني د خدای کتاب

بس دیو الله منو به، سم په لار د شریعت ځو
نن یو دلته، سبا هلته، هېروی نه شو حساب

که مو دارنګه خود سره، سردارانو (1) ته واک ورکړ
په پردیو به وپلوري، هم د دې هېواد تراب

چې څه وړی شي هغه یې وړي، دا په سپینه ږیره غل دی
د شپانه جامه کې راغی، دی په اصل کې قصاب

[1] سردار محمد داود خان او کورنۍ ته یې اشاره ده.

ده بې پته کړې مېرمنې، لـه اسلامه کـوي کرکـه
چې اسلام خرابوي څوک، هغـه خپلـه شي خراب

ځان يې تېښتې ته جوړ کړی، پام کوئ درنه خلاص نه شي
چا چې بنه کړه پرې يخـه، هغـه دی عـالي جنـاب

د اسـلام لپـاره پـاڅئ، د تکبيـر بشـکلو نـارو کـې
خورد و خواب ته ځواب ورکړئ نو دښمن به کړئ ځواب

پاڅئ پورته شئ ځوانانو، «نبي خيل» سره يو لاس شئ
انقلاب يـې دی راوړی، انقـلاب دی، انقـلاب

# امتحاني مرحله

نن به جلا کېږي، منافق له مسلمان څخه
راغی امتحان پر مونږ له پاک الله سبحان څخه

څوک به تېر له پته، له عزته له اسلامه شي
څوک به د اسلام لپاره تېر شي هم له ځان څخه

څوک به مسئلې لټوي، دغو دهريانو ته
څوک به په سره توره کړي، دفاع له پاک قرآن څخه

څوک به نن د ځېټې، د شهوت عبادتونه کړي
څوک به فتح غواړي، له الله رحيم رحمن څخه

څوک به وايي نه لړو، طاقت هو مره چې پورته شو
يابه د ګيدړو په څېر، تښتي له ميدان څخه

يا به د ابليس غوندې، جاسوس د کافرانو وي
يا به د چوکۍ لپاره، تېر وي له ايمان څخه

څوک به د زمرو په شانې، دې ميدان ته ودانګي
اوري به رحمت پرې، له کرسي، عرش و اسمان څخه

غږ به شي اوچت، فضا به ډکه له تکبيره شي
تل دې داسې شوي، د افغان له مسلمان څخه

ورشه نبي خېله د داود په غوږ کې ناري کړه
ولې دې ممبر، محراب کړ محوه، له نشان څخه

پاڅه توبه ګار شه، نن دلې، سبا به ګور کې يې
واخله څه عبرت خو، د «امان» له ګورستان څخه

بيا به کړې ارمان، د «نبي خېل» هسې وينا پسې
ډېر د ګټې وخت، نه بنايي تېر شي له انسان څخه

# څنګه افغان او څنګه مسلمان؟

تا وې چې افغان یمه، نو دا څنګه افغان یې ته؟!
تا وې مسلمان یمه، دا څنګه مسلمان یې ته؟!

ښځه دې بربنډه شوه، په دې څه غیرت نه کوې!
لور دې رقاصه، زوی دې دهري خدمت یې ته کوې!
پوه نه شوم افغانه، مسلمانه چې دا څه کوې؟
سرګرېوان کې ښکته کړه، چې بد کوې، که ښه کوې

خپله لار دې پرېښوده د بل په لار روان یې ته
تا وې چې افغان یمه، نو دا څنګه افغان یې ته؟!
وېښ شه که پیرو د پاک نبي اخر زمان یې ته!
تا وې مسلمان یمه، دا څنګه مسلمان یې ته؟!

ستا په طبيعت کې خودي نشته، خوديني شته دی
يو تر بله ځکه دوستي نشته، دښمني شته دی
تره او وراره نشته، بس يو اخې تربګني شته دی
خوار لکه يهود يې که هر څو دې شتمني شته دی

ځکه نو د دين په ځای، دنيا پسې چالان يې ته
تا وې چې افغان يمه، نو دا څنګه افغان يې ته؟!
څه نمرې وهې، چې ناست د بل پر دسترخوان يې ته
تا وې مسلمان يمه، دا څنګه مسلمان يې ته؟!

کان دی، که پومبه ده، که ميوه ده، ټول د بل وينم
ډک مولـه پرديو، دفترونه د کابل وينم
دې شين پسرلي کې نشته ګل او نه بلبل وينم
پروت د غم پرونی، ستا د سيمې په وربل وينم

اوس اصيل بچی، حلالي زوی، د ايمل خان يې ته
تا وې چې افغان يمه، نو دا څنګه افغان يې ته؟!
وو ايه که نر يې، دا په کوم اصول روان يې ته
تا وې مسلمان يمه، دا څنګه مسلمان يې ته؟!

څوک چې مسلمان وي، د اسلام په لاره تله غواړي
بې له پاک الله نه، د بل چا بندګي نه غواړي
ستاسو حکومتونو له دهريانو څخه څه غواړي؟
لاس يې دی ورکړی، ورځ په ورځ يې لا پرده غواړي

مست يې که بيده يې، که بندي د ګورستان يې ته؟
تا وې چې افغان يمه، نو دا څنګه افغان يې ته؟!
پاڅه «نبي خېله» که حافظ د پاک قرآن يې ته!
تا وې مسلمان يمه، دا څنګه مسلمان يې ته

## الهي زور

او افغان اولسه لېږدېدلی یې کوم لور ته
څوک یې، چېرته ځې او څوک دې راوستلو کور ته

روند یې که ویده یې، که رښتیا دې ساه ختلې ده
پاڅه که ژوندی یې، ګوندې ولوېدلې ګور ته

غېچ د «امان» اخلې، په ناموس د اسلام لوبې کا
وګوره سرتورې، د بازار پښتنې خور ته

تش په بېره برېت، خو کوم سړی، سړی کېدی نه شي
داسې نر به څوک وي، چې دې نر ته شي را پور ته

دا د سوشلیزم، خیالي باغ ته چې ځوک کېوته
لاس په لاس به مل ځي، له کافر سره، سرۀ اور ته

ځوک چې وي مسلم، د مسلمان سره یو لاس به شي
کړي به ملحدان، د محلدانو جنده پورته

آفرین په داسې دیانت، چې ورله وریې کړو
ځای د پاک قرآن سره، ملي تنک او تکور ته

وارد «نبي خېل» دی، دې میدان ته به راو دانګي
لاس یې اچولی، بس د پاک الهي زور ته

# د شهادت جام

یا خو مرګ د شهادت دی، یا خو ژوند دی په اسلام کې
یا به تېر شوله دې ژونده، یا به پایونګ و نام کې

یا به خلاص افغان اولس کړو، د الحاد له استعماره
یا به یو موټی ایرې شو، په حضور د خاص و عام کې

یا به ستر شي مېرمنې، د اسلام په سمه لاره
یا به اور د شخړې بل شي، د افغان اولس په قام کې

یا به بیا افغانستان کې، د اسلام حکم روان کړو
یا به مَی د شهادت څښو، د الله د مینې جام کې

یا به دغه ګنده سري، سرداران له منځه یوسو
یا به وښندو سرونه، د اسلام په احترام کې

ملا تړلي راوتلي، بس دیو الله په مینه

# ځنډ نه دی پکار

دا تـه د چـا بنـده يـې، بنـدګي د چـا کـوې؟
دا څه دربانديې وشو، چې خپل ځان تباه کوې؟

تـا خـدای رسـول منلـی، د قـرآن احکـام منـې
رښا لرې پـه لاس کې چې خپـل ديـن اسلام منې
رښتيا ده مسـلمان يې، چې حـلال، حـرام منـې
پـه سيوري د اسلام کې بـه هم خيـل او قـام منې

بيـا ولـې نـو ملاتـړ، د ظالمـانو لا کـوې؟
دا څه دربانديې وشو، چې خپل ځان تباه کوې؟

ملاتـړ چې د ظالم کوې، ظـالم ورتـه وايـه شي
پـه دې ناولي کـار کې بـه يې، سرسابه سابه شي
د حق ګوزار کـه راغی، تار پـه تار بـه يې ماغزه شي
بـاور پـه دې خبره، د چـا شي او د چـا نـه شي

يـو خرپ د تـورې ورکـړه، کـه مـولی رضـا کـوې
دا تـه د چـا بنـده يـې، بنـدګي د چـا کـوې

یو خرپ د توري ورکړه دا میلمه نه دی دا غل دی
دا بل ورسره سم کړه، چې خړ سپی د لېوه مل دی
جوړ کړي یې دوستي کې، مسلمان ملت ته چل دی
راغلی راته ښکاري، د سردار صاحب اجل دی

راپاخه نن دې وار دی، که رښتیا غزا کوې
دا ته د چا بنده یې، بندګي د چا کوې

یو څو ته پیدا شول، خو د حق وو طرفدار
غوښتل یې چې بوتان او ظالمان کړي، تار په تار
راووتل میدان ته، په تکیه د کردګار
رڼا یې په اسلام، واړه عالم کړو په تلوار

دا ته «نبي خیل» ولې، ورته نن سبا کوې؟
دا څه دربانديې وشو، چې خپل ځان تباه کوې؟

# د غم زغم ختم شو

نور د نجونو مکتبونه زغمی نه شو
دا د نجونو لوڅ سرونه، زغمی نه شو

چې کمرې د یارانې دي ترینه جوړې
هسې سپک سپک دفترونه، زغمی نه شو

مرګ مو شه دی، نه چې هومره یو بې پته
دا ظلمونه، رشوتونه، زغمی نه شو

مال او سر به کړو فدا، د دین په لار کې
په لینن خو درودونه، زغمی نه شو

د هورا په نوم رژیم، راغلی ورک شه
د پردیو شعارونه، زغمی نه شو

چې په دین او دیندارانو مو شي لوبې
دا دردونه دا غمونه، زغمی نه شو

«نبي خیله» شه په سر، مونږ د رېسې یو
نور د دې خلکو حکمونه، زغمی نه شو

# د شرقي فکر چوپړه!

دا په کومه لاره درومې، د افغان اولس دښمنه
دا دې څه پلیت کارونه کړه، اسلام کې را دننه

ته لا مخکې پرنګی وې، تا کې ستر حیا نه وه
خو افسوس چې خاینانو، بیا ستا وکړله پالنه

ته چې صدر وې خاین وې، چې میرمنې دې کړې لوڅې
د محراب، ممبر په ځای نن، د عقاب کوې پوښتنه

واړه کاني بوتي دلته، لعنتونه په تا وایي
دلته کاني، بوتي وایي په تا باندې لعنتونه

نن سبا به دې حال ګورې، د «ظاهر» «امان» په شانې
د دې خاورې بچې نه یې، او د دې خاورې خاینه!

د غربـي «هـوى» بچيـه، د شـرقي فكـر چـوپړه!
د اسيا پـه زړه كې څـه كـړې، يـو طرف تـه شـه خـچنـه

پـه زمـزم كلـه پـاكېږي، خولـه مـرداره د بو جهـل
د نفـاق اسلام بـه څنگـه، ستا ځيره كړي، سپين بخنـه

پـه دا تـورو تـورو زړونـو! اثـر نـه كـا ستا خبـرې
«نبي خيلـه» پسـې واخلـه، دا مـصرى تـوره غمجنـه

# څوك ياست؟

دا هېواد د چا دی، نن کاروونه د چا غواړي؟
کور کلی د چا دی او پرې ایښې دي چا لاړي؟

څوک پرې حکومت کا او څښتن يې وايه څوک دی؟
څوک يې شنه، پاخه، پردو ته يو ځلې ورنغاړي؟

څوک دې ډاکومار، پښې يې د چا په مری ايښې؟
څوک ننګ و ناموس، د مسلمان ملت ور داړي؟

بسه پوهېږو څوک دی او دا چا دلته راوستی؟
تو لعنت په هغو، چې په دوی باندې لا وياړي

مونږ کرار بېده يو، کوریې تول تالا والا کړو
مخکې، اسمانونه، سمې، غرونه په مونږ ژاړي

پاڅئ مسلمانو! چې اسلام اوس درنه تروړي
وينښ شه «نبي خبله!» چې دې کور شو لاړي لاړي

# الله اکبر

بیـــا افغانسـتان شـو د بیمـانو پـه لاسـو کـې
بیـــا د مسلمانو، پښـې شوې بنـدې زولنـو کـې

تـورې لـړې بیـا د کفـر، دلتـه را خپـرې شـولې
بیـا شـو حکومـت د دهریـت، تـورو پـردو کـې

بیـا د ظالمـانو د نیـشـې، شپـې ورځـې راغللـې
وینـې د ملـت څښـې، د شـرابو پـه پیـالو کـې

بیـا یې بې پردې کړې، د افغـان مېرمنې ښکلې نن
بیـا تــازه ګلونــه، د اسـلام دي وچیـدو کــې

دور د نفاق نن، په افغان ولس راغلی دی
غله دي چې ځان نغاړي، د کوربه وو په جامو کې

نه پرېږدي قرآن چې، شي را پورته له ممبر څخه
نه پرېږدي محراب، ممبر لا خپله په دې شپو کې

بیا د انقلاب انقلاب چغې دي چې اورو
بیا سېلاب د وینو به شي سم، خپلو پردو کې

نن دی که سبا دی، سبا کېږي «نبي خپله» به
ستوري د اسلام کړي، پلوشې په تکبیرو کې

# نعره تکبیر

شور دی د تکبیر، ناري غورېږو ته مې راځي
بیا لکه چې پیل شوه، په سرو وینو کې بازي

دا مسلم ملت، د کفر جغ په ښځ کې نه مني
ځکه پاڅېدلي دي، صافي، غلجي، ځاځي

نور د خوږیانو، شینوارو صبر ختم شوی دی
نه شي نور منلی، د کافرو غمازي

کوږ هزاره، ازبک، تاجک را ښورېدلي دي
هر یو لکه بیر، د کابل خوا ته راځي

چغې دي، ناري دي، اوازو کې تکبیرونه دي
ټول را ښورېدلي، ورکوي دوکه بازي

نور دغه غدار اسلام دښمن، حکومت نه مني
دې ظالم رژیم کې، ترینه دین او دنیا ځي

کلک شه «نبي خیله»، په شاتګ د مسلمان نه وي
نن دی سعادت دی، که شهید شوې که غازي

# اردو څه کوي؟

مـونږه د الله پـه لار کـې سـر او مـال بـښـندو
نـه پرېـږدو کـافر دلتـه، ملحـد وي کـه هنـدو

ټولـو تـر برېستنې پښـې اوږدې را غزولـې دي
مونږ پـه داسې پښـو باندې مصرۍ تـوره ايږدو

سر کې چې ايمان او زړه کې مينه محبت نه وي
داسې سر دې ورک شي، ترېنه ښه بولم کدو

داسې زړه خو زړه نـه دی، مـولی دې سره وچوي
دې زړه کـې اثـر کـوي، د حـق پـه ځـای جادو

هر څـه يې تـالا کـړه، اوس لا تمـه د شاباش لـري
غـل مـو حکمـران او پهـره دار مـو دی بـدو

ټولـه غلـه وړي، لـه دې هېـواد څخـه پرديـو تـه
دا مـونږ ک غـدار دی، پـه لاس ورنـه کـړئ کندو

پاڅـه «نبي خبلـه»، دجهـاد ميدان تـه ودانګـه
خـدا ايږو چې ملاتـړ بـه دې کـوي، مسلم اردو

# فکر وکړئ

چېرې اسلام، چېرې دا ظلم و ستم
څنګه چپيان به، بيا په لاره شي سم

دافغانانو له دې سيمې څخه
چې وي داود، څنګه به لرې شم غم

په خوله پښتو، پښتونولي يادوي
عمل کې وايي، چې پښتونه منم

ځکه يې مره کړه، پښتانه شاه زلمي
يتيمان وير، کونډې کوي، چې ماتم

څه شو عارف[۱]، خان محمد[۲] ورسره
ځي په سيفو[۳] پسې له سترګو مې نم

څنګه صافي به، خپل قصاص وانخلي!
څنګه شينواري شي، کورو کې به تم

يا به پړونى کړي د ښځو په سر
يا به د نر په شانې، اخلي قدم

زه «نبي خېل» تش په خوله نه جنګېږم
له تورې سپر سره د ښمن ته به ځم

[۱] عارف شينواري، ملی تجار چې داود خان اعدام کړ.
[۲] ستر جنرال خان محمد کونړی، د ظاهر شاه د وخت د دفاع وزير چې داود خان اعدام کړ.
[۳] انجنير سيف الدين نصرتيار د اسلامي خوځښت له بنسټ ايښودونکيو څخه و، چې داود خان اعدام کړ.

# د الله رضا

کـه مـې سـر د ديـن پـه لاره کـې فـدا شـي
کـه مـې کـور او کـورنۍ پـه کـې تبـاه شـي

کـه مـې زوی او کـه مـې لـور رانـه جلا شـي
کـه کـلا مـې لـوټې لـوټې او تـالا شـي

کـه مـې مـال د ظالمـانو پـه ربـتيا شـي
کـه مـې ژونـد، مړينـه د دوی پـه مـدعا شـي

کـه مـې پښـو کـې زولنـې تـه وبـالا شـي
کـه لاسـونه هتکـړو کـې مـې خوسـا شـي

او کـه مـونږ سـره نصرت د پـاک مـولی شـي
کـه عزت مـو شـي نصيب، بخت مـو بـالا شـي

کـه دښـمن مـو پـه توبـو توبـو لګيـا شـي
او بـې پتـه، بـې عزتـه يـو ځـل بيـا شـي

«نبي خيلـه!» خپـل مـرام پرېښـولی نـه شـم
هغـه دا چـې يـو الله لـه مـونږ رضـا شـي

# اسلام او سوشلېزم

وه د زړګي سره مسلمانه چې دوکه نه شې
دې انسي شیطان سره د چا په خوله جوړه نه شې

دی چې د اسلام سره الحاد ته هر کلی کوي
هوش کوه غلط چېرې، د دې موذي په خوله نه شې

دی د سوشلېزم نجاست، چې په اسلام تپي
شړو باندې سر دی، پام کوه، چې ور سره نه شې

پت او عفت نه لري، له کومه به عزت مومي؟
ده سره په لاره د تګ‍ی کې مرکه نه شې

غواړي چې مسلم ملت، په نورو باندې وپلوري
داسې تجارت ته، مسلمانه اماده نه شې

دین سره دښمن دی، چې دښمن د عالمانو دی
پام کوه چې مینه کې یې ته هم سره لمبه نه شې

دې خو په دې سپینه ږیره، مل د شیطانانو دی
ته که «نبي خېل» یې، د شېطان کره مېلمه نه شې

# الحاد

درود خو په قرآن کې په محمد مصطفی دی
راغلی ځای په ځای هم مسلمان ته له مولی دی
لینن باندې درود وایه ویلی، چې کوم چا دی؟
داود ته وایه، هغه سړی چیرې نن سبا دی

ورکړې یې هغه ته دبدبه، شان و شوکت
بندې دی هغه ځوک، چا چې ویلی پرې لعنت

نران ګرځي بېکاره او چوکۍ ښځو نیولې
میدان د کار و زار کې نران، ښځو تښتولي
کمرې د فحاشۍ یې له دفترو جوړې کړې
پیسې د خوار ملت یې په دې لارو لګولې

نیولې یې تر مخه د فرعون سیاست
موسی ورته پکار دی چې یې ختم کړي عزت

قرآن چې ځوک مني، هغه همداسې کوي چارې؟
چې مل شي د کافرو ورکوي د اسلام لارې
لېږ سر دې را اوچت کړه ولې پروت یې په قلارې
افغان اولسه! ویښ شه، ټولې چارې دي مردارې

په خوله یې چې تېر نه وځې، امتحان یې کړه خدمت
چې ځومره دي ډېر شوي رشوتونه او خیانت

قرآن چې ځوک مني هغه نو هله وي امام
چې خپل مسلم ملت کړي سم په لاره د اسلام
درود چې په کافروایي هغه کاندي اعدام
د خدای او د رسول د حکم کاندي احترام

د دغسې امام ځکه لازم دی اطاعت
چې خدای رسول خلاف ترېنه بللی بغاوت

نن دغسې امام، زمونږ په ډله کې موجود دی
چې ځوک یې بدي غواړي، بس هغه سړی مردود دی
باغي ترېنه همدغه، منافق شاني داود دی
دا حکم د اسلام، په کتابونو کې موجود دی

که حق زورور بولئ هله زر شئ را اوچت
او که زور درته حق ښکاري، نو یاست خپله ملامت

که وایي چې اسلام مې په کار نه دی، نو کافر دی
یوازې مونږ ته نه، بلکې جهان ته لا مضر دی
چې ځوک ترې په ځنګ شوی دی، رښتیني مهاجر دی
الله دې یې شي مل، چې له هېواده مسافر دی

او چې څوک یې دي وژلي، مسلمان د دې ملت
هغه دی بختور، شه مبارک یې شهادت
افغان اولسه! راشه منځ کې وکړه قضاوت
چې مونږ وربانديې ګرم یو که داود دی ملامت؟

# د نفاق دور

نن وینو بازارو کې ګرځي ښځې نران یوځای
چا ایښې په طاقو کې قرآنونه، بتان یوځای

څوک ځي خپله مسجد ته لوخه لور لېږي مکتب ته
له ځانه چې کړي خوښ ګوندې رحمان او شیطان یوځای

څوک غواړي سوشلېزم د اسلام سپینه لمن کې
خوشحاله چې ملت کاندي، دهري، مسلمان یوځای

بازار د نرې ګرم دی، په هسې سوداګرو
چې پلوري په چل ول کې به سامان او ایمان یوځای

نن هغسې ځوانان هم لا جهاد ته راوتلي
شهید چې شي، غازي شي اولا وساتي ځان یوځای

دنیا هسې تصویر د نقاشانو جوړه شوې
هستوګنه له کافر سره چې کړي مسلمان یوځای

دا دور د نفاق دی، «نبي خېل» کړي ترېنه ترهه
چې نه شي نابیره چېرې مځکه اسمان یوځای

# رښتيني مجاهد

کوم سر چې په سجده شي په دربار د کردګار کې
بيا نه پرېږدي خنډونه د الله د دين په لار کې

دا نن چې زيات و کم مسلمانان شول بې همته
سودا د آخرت پلوري د دې نړۍ بازار کې

څوک پروت دی په سجده، خو ياد وي خندانې سترګې
طواف کړي د کعبې، خو زړه ترې پاتې خپل ديار کې

چا وتړله ملا، سر ورکوي د قام لپاره
چا سر و مال دَ وکړي د چوکيو په قمار کې

چا ځان کړو مجاهد چې په دنیا کې شي سرلوړی
څوک تمې د پیسو کړو راګوزار په دغه کار کې

دا ټول لکه داود سربازي کړي دنیا لپاره
اخر به شرمنده شي د قهار غني دربار کې

دا ګرد سره مغلوب دي، د شیطان په معرکه کې
تړلي په زنځیر د شیطانانو په قطار کې

پس هغه مجاهد دی، «نبي خپله» په رښتیني
چې سر و مال فدا کړي د الله د دین په لار کې

## سوشلېزم او اسلام

بیا رنګین ګلونه د اسلام ښکاري مړژواندي
بیا لکه غوبلې چې کفار په مونږه کاندي

بیا یې نوي نوي نوکران په منډو منډو دي
دي خواته راځکه ځکه غوبږونه د جهان دي

ډېرې یې قصابي کړه، خو په غوښو یې مړېږي نه
دا ملت انسان دی، که پسونه دي د لاندي؟

ښځې یې کړې لوڅې او ترمخ یې ورته ګډې کړې
دا ساده ملت دی، چې اوس هم لا ورته خاندي

غله دي خبردار! چې د کور به ګومان پرې ونه کړئ
هومره چې تېری کوي د نورو نوکران دي

غـواړي سوشـلېزم لـه اسلام سـره دو کـه نـه شئ
وه مسـلمه وروره، چـې دا تـول منافقـان دي

نه شي په لمانځه کې د لمانځه نه غير کارونه نور
داسـې فارمولونـه همـه واړه د ايمـان دي

خـدای تـه بندګي او د بـشر قـانون تـه هـم بلـې
پام کړه «نبي خپلـه»، چـې دا لـوبې پـه قرآن دي

# هلئ لوړ کړئ دا نشان

راشه سترګې دې رڼې کړه لټوه، یې په قرآن کې
مسلمانه که مطلب دې وي اسلام، په دې جهان کې
اسلامي حزب ته راشه، چې مینده یې کړې نشان کې
لس شیان دي ځلېدلي، لکه ستوري په آسمان کې

لـه اولـه کلمـه ده، لا الـه الا الله
خدای واحد مو دی بېشکه، محمد رسول الله
چې رښتیا خدای ته منقاد وي، نو که وشي ترې ګناه
شفاعت به یې وکاندي، د همه بشر خیرخواه

دوه کرچونه یعنې توري مسلمان لره پکار دي
چې پرې سم کړي هغه خلک، چې له دین څخه بېزار دي
چې دعوه څوک د اسلام کا او له توري نه انکار دي
مسلمان بللی نه شي، هسې نه چې ګنهګار دي

اجازه به توره اخلي له دې پاکې کلمې نه
د چا قتل روا نه دی، بې د دې له اجازې نه
دوی سرونه ورته ایښي، وایي نه شي بې له دې نه
چې منکر له تانه ځوک دی، سرېې بېل کړو له تنې نه

ترې نه لاندې پلوشې کا اسلامي عجب شعار
د تکبیر شکلو نارو کې مسلمان کړي کاروبار
په خپل سر به کوو لوبې، په تکیه د کردګار
چې له هر چا ځخه لوی دی، هم قهار دی، هم غفار

چې ځو لوړ نه شي نړه کې، غږ د الله اکبر
مسلمان ته په کار نه دي، چې خطا کړي، توره سپر
د قدرت واګې به نیسي، په نړۍ کې لروبر
خو مقصد به یې همدا وي، چې اسلام شي معتبر

ځکه لاندې له تکبیره، غوړیدلی دی قرآن
خو هغه ترې کوي کرکه، چې ځوک نه لري ایمان
او رحمت په هغه چا شي، د کریم غني سبحان
چې عمل ورباندې کاندي، لولوي یې هر زمان

دې قرآن کې حکم شوی، چې د دین رسۍ کړئ کلکه
په دې لاره شئ یو موټی، کړئ دښمن ته تیره لکه
یو تر بله جلا نه شئ، یو د بل مه کوئ سپکه
که مو دغه کار پوره کړو، بریمن به وئ بېشکه

یو تر بله سره مینه، لوی نعمت بللی کېږي
خو چې زړونه سره یو شي، یو هدف ته ولاړېږي
د الله د دین په لار کې، یو له بله قربانېږي
نه چې نوم یې وي د مینې، یو د بل په څټ سپرېږي

او شپږم په دې اقرار دی، چې ملک ټول د رب جبار دی
مونږ ټول یې بندګان یو، دی زمونږ کردګار دی
دی څښتن د هسکو ټیټو او د هرڅه شي واکدار دی
ټول و ده وته محتاج دي، که غریب دی، که مالدار دی

حکم، حکم د چا نه دی، حکم ټول د رب جلیل دی
چې د ده له حکمه تېر شي، له ذلیلو نه ذلیل دی
له ملکونه را بیل شي، د چا مل چې عزازیل دی
او چې خدای وته تسلیم شي، بس هغه د خدای خلیل دی

حکومت د پاک مولی دی او بنده یې خلیفه دی
چې په لاره د اسلام ځي، نوراني شکلي بنده دی
کرامت یې خپل ساتلی، عدالت هم ورسره دی
نیکمرغي یې ده په برخه، که وي ښځه، نارینه دی

او چې بله لاره نیسي، نو شیطان ورسره مل دی
د دوزخ په تناره کې اور همدې خلکو ته بل دی
که حاکم دی، که محکوم دی، کوم مادي مطلب ته غل دی
پام کوه پرې دو که نه شې، د دوی هر عمل کې چل دی

دا محراب چې دلته ښکاري، دا زمونږ د جنګ ډګر دی
دې ډګر ته چې څوک راشي، بریمن او بختور دی
لوړتیا دلته شي ګټلی، دلته خان دی، که نوکر دی
اسلامي ښکلي قانون ته، یو له بله برابر دی

که غریب دی، که مالدار دی صف کې یو شانې ودرېږي
یعنې ګرد مسلمانان به جنګ ته هسې روانېږي
امام بویه چې دیندار وي، مال نسب نه پکارېږي
مانا دا چې به دیندار ه د دې دلې مشر کېږي

دا ممبر چې دلته ایښی یو دوه درې فته او چت
مونږ ته درس راکوي داسې چې امام لري عزت
ده ته څوک ختلی نه شي په نسب او په دولت
یا نې مشر په اسلام کې وي څښتن د دیانت

نهم دا چې تول کارونه بېرته خدای لره ورځي
هلته هر څوک معلومېږي، چې موذي دی که غازي
که شپه ورځ ده دې دنیا کې یو ځي بله راځي
د کافرو په دولت چې مسلم ونه خوري بازي

عاقبت ته صبر وکړئ، چې اخر میدان د چا دی
دې دنیا کې لاندې باندې کله هغه کله دادی
مسلمان هو مره مسعود دی، چې راضي ترېنه مولی دی
که غازي دی، که شهید دی که بنده دی که آغا دی

دا دوه ورېي د غنمو چې ولاړ دلته کې ښکاري
وايي دا اسلامي حزب، هم مادي ودانې غواړي
خونه داسې، چې حرام به له حلالو سره نغاړي
خان، ملک او منصبدار به دا غریب خلک ورداړي

بلکې دا چې لـه قرآنـه زده کـوي بـه د ژونـد لارې
د قـرآن تـر سـيوري لانـدې، سـموي بـه خپلـې چـارې
پـه مـادي معنـوي ژونـد کـې، چـې ونـه کـړي بل تـه نـارې
دا خـودي ځـان کـې پيـدا کـړه و مسلمه کـه هوښـيارې

دا پـه شـل رنګـه بيتـو کـې لـس شـيان مـې کـړل بيـان
اسـلامي حـزب تـه راشـه لـه اسـلامه شـه قربـان
لاس کـړه تـورې تـه ورورانـدې خـو پـه حکـم د قـرآن
د نـړۍ لـه نشـانو نـه هلـې لـوړ کـړۍ دا نشـان



تور زړیو ته یم توره

او

سپین زړیو ته یم سپینه

# ترانه

ما ولوله اشنا چې ترانه یمه رنګینه
تور زړو ته یم توره او سپین زړو ته یم سپینه

ما ګوره اشنا په ما کې څه ښکلي ګلان دي
خالص راکې پېیلي، په رښتیا د رو مرجان دي
منلې یم هغو چې اسلامي ښکلي ځوانان دي
ستایلي مې خلقیان دي، چې رښتیا د روس بچیان دي

لیلا یم د دیندارو ماته نه ګوري بې دینه
تور زړو ته یم توره او سپین زړو ته یم سپینه

ما ولوله اشنا چې ترانې مې د جهاد دي
عمل چې په مانه کړي بس هغه خلک برباد دي
رښتیا مسلمانان، خو په جهاد باندې آباد دي
چې توره چا کې نه وي، هغوی پاتې نامراد دي

اخیستی مې الهام دی له قرآنه په رښتینه
تور زړو ته یم توره او سپین زړو ته یم سپینه

ما ولوله اشنا! زما اول کې بسم الله ده
لیکلې نبي خیل یم، انتها مې حمد الله ده
مقصد مې طریقه د محمد رسول الله ده
قسم دی چې جګړه په لا اله الا الله ده

اسلام نه شي ساتلی، چې څوک ساتي خپله وینه
ما ولوله اشنا، چې ترانه یمه رنګینه

ما ولوله اشنا چې انقلاب مې دی راوړی
په ښکلو ترانو کې، لوی کتاب مې دی راوړی
راوښ چې مسلمان کړمه اسباب مې دی راوړی
«تره کی» چې پرې مري هسې خطاب مې دی راوړی

روسانو ته بلا او پښتنو ته یم شیرینه
تور زړو ته یم توره او سپین زړو ته یم سپینه

## حمد او هیله

انس و جن، مَلَک دې، خدایه سم ستایلی نه شي
ستا ثنا صفت چې، پیغمبر شمېرلی نه شي

ته حکیم، علیم، قدیر، قهاریې، په دې پوه یمه
زیات رحمن، رحیم، ستار، غفاریې په دې پوه یمه
غمو او وړو نه خبرداریې په دې پوه یمه
تل د صالحانو مدد ګاریې په دې پوه یمه

ستا دیو صفت جرړې جهان سپړلی نه شي
انس و جن، مَلَک دې خدایه سم ستایلی نه شي

لم یزل یې خدایه! لویه خدایه لایزال یې ته
ته یې ذوالکرم او په رښتیا چې ذوالجلال یې ته
ته احد، صمد یې او څښتن د هر کمال یې ته
او مالک الملک، نور فنا، یو لازوال یې ته

عقل مې له دې نه خدایېرو مخکې تللی نه شي
انس و جن، ملک دې خدایه سم ستایلی نه شي

ستا په ارادې پورې تړلې دنيا ټوله ده
وچې که لمدې دي، ونې بوټي ګياه ټوله ده
لويه غني خدايه ستا په واک کې وينا ټوله ده
نثر دى که نظم، د لفظونو مانا ټوله ده

بې ستا له تقديره ستر ګې رپ وهلی نه شي
انس و جن، ملک، دې خدايه سم ستايلی نه شي

او واحد، احده! هر صفت کې چې ممتازيې ته
مونږه ناخبريو، خبردار زمونږ په رازيې ته
اى د جهان ربه! مونږه اړ او بې نيازيې ته
ته مو بريمن کړې، د مظلومو چاره سازيې ته

نور خو «نبي خېل» ظلم و ستم زغملی نه شي
انس و جن، ملک، دې خدايه! سم ستايلی نه شي

# حریت او مساوات

مساوات څه شي ته وایي، چې لیوال ورته جهان دی
حریت نه مطلب څه دی، چې مقصد د هر انسان دی

دا څه هسې تعبیرونه هر سړی کولی نه شي
سړیتوب رښتینی غواړي، چې تفسیریې هومره ګران دی

سر او غوږ او قواره کې آدمزاد سره یو شان دی
خو انسان هغه باله شي، چې د حق په لار روان دی

هر سړی ځان سړی بولي، خو سړی سړیتوب غواړي
ځوک په نوم به ستوری نه شي، ستوری، ستوری د اسمان دی

له قرآن څخه ناولي مطلبونه که څوک اخلي
مطلبونه شیطاني دي، مبراء ترینه قرآن دی

بس هم دغه شاني بويه مساوات او حريت هم
چې تفسيريې ځوک غلط کا، نو غلط هغه انسان دی

حريت او مساوات خو يو له بل سره لازم دي
ځوک چې يو د بل نقيض کا، په غلطه لار روان دی

راشه اوس نو کمونېزم، سوشلېزم ته لږ ځير شه
حريت او مساوات کې چې دوی کړی کوم بيان دی

دوی په دې خبره کلک دي، چې هر ځوک کار کې ازاد دی
د بنده له بندګۍ نه آزاد شوی هر انسان دی

دا خبره خو ندوره هر انسان وته ښکارېږي
آزادي خو په رښتيا چې ستر هدف د زوړو ځوان دی

مساوات دلته بيا کوم دی، يو حاکم بل يې محکوم شي
کارو بار د دنيا هسې له اوله را روان دی

چې ناپوهه بې خبر وي، نو محکوم به وي د پوهو
او چې پوهه ورسره وي که غريب وي هغه خان دی

مساوات چې راشي منځ ته دې دپاره نو دوی څه کا
په ډوډی، جامه، مسکن کې، وايي هر سړی يو شان دی

که څوک بنه پام ورته وکا، دا شيان يې چې محدود شي
ځان بندي ورته ييا ښکاري خپل هېواد ورته زندان دی

ځای په ځای بنديخانو کې بې ډوډی، مسکنه څوک دی؟
او جامه ترې چا ويستلې، مجرم شوی چې کوم ځوان دی

خو ډوډی، جامه، مسکن يې، چې وي واک د حکومت کې
همدغه يې مجازات دی، څوک چې چپ ته بنديوان دی

مساوات او آزادي خو يو دبل ضد و نقيض شوه
دا اېزمونه چې منې څوک، دښمن ځکه د يزدان دی

خدای بشر ته حق ورکړی، چې آزاده ژوندون وکا
خو په کار او تصرف کې حق د بل بشر امان دی

دغه حق کې برابر دي، خان، غريب او کشر مشر
دې مانا د حريت کې مساوات هم درخشان دی

آزادي په تصرف کې، امریکا هم ده منلې
خو په امن نه دی هلته، چې بېوزلی کوم انسان دی

مساوات هغلته نشته، یو ظالم بل یې مظلوم دی
سود قمار دی که رشوت دی هلته وده کړي روان دی

لرو برو کې نو ځکه، خوار بشر و ته او ربل دی
له دې اوره «نبي خیله» بچ یوازې مسلمان دی

# د استعمار نوکران څوك دي؟

مونږه تو لعنت په شیطانانو تل ویلی
تل مو سیاست د لرو برو دی غندلی

روس دی که انګریز او که مرتد او منافق وینو
چین دی که جاپان دی پخپل وار مو دی ډګلی

کفر راته ښکاري چې مادي وته سر ښکته کړي
دا سر کوزیتوب خو دې خلقیانو دی منلی

نه مو د «ظاهر» او د داود حکم منلی دی
دې غریب ملت کې یې چې ظلم چلولی

دا اصلي علت دی چې «ولي»[1] مونږه ځپلی وو؟
هو! ځکه داود زمونږه هر سړی داړلی

اوس خلقي دولت ځکه زمونږه دښمني کوي
دی د کفر لاره کې له هغو نه مسپلی

مونږ خو لرو بر کافران واړه یو ملت ګڼو
واړه د اسلام په مقابل کې صف تړلی

[1] جنرال سردار عبدالولي د ظاهر شاه زوم او ځواکمن پوځي افسر.

نـه خـو کمـونېزم د روسـانو مـونږ منلـی شـو
نـه مـردار رژيـم د انګرېزانـو شـو سـتايلی

دوی سـره دوسـتي د مسـلمانو دښمني ګڼـي
چـاچې د قـرآن حکـم پـه زړه کـې دی منلـی

دوی چې لـه تکبيـره د هـورا چيغـې تـه ښـه ګوري
هـم يـې د روسـانو پـه ليـنن دروډ ويلـی

وژنـي عالمـان چـې د اسلام خواتـه بلنـه کـړي
څـوک يـې بنـدي کـړی، څـوک يـې هسـې ځغلولی

ږيـره چـې سنت ده، دوی يـې ننـه د رجعت بـولي
ډېـر چـې منـافق وي، هغـه زيـات ګڼـي ښـاغلی

ځکـه نـو څـوکې د منـافقو پـه لاس ورغلـې
هغـه معتبـر دی، چـې اسلام يـې سپک ګڼلـی

مـونږه خاينـان يـو او کـه دوی پـه خيانـت کـې دي؟
څـوک د استعمار لپـاره کـار کـړي غلـی غلـی؟

پرپـرده «نبي خيلـه» وينـا پرپـرده را ميدان تـه شـه
دا ملـت يـوازې پـه سـرو وينـو شـي سـاتلی

# بريالی ځوك دی؟

منمه شرمښانو ډېرې مېړې دي داړلي
چرګوړې ټپوسانو ځای په ځای دي تښتولي

خو مېړې يې كورو كې، شرمښان تښتي له كلي
چرګاني خلك ساتي، ټپوسان په تيږو ولي

روسانو بخارا او سمرقند رښتيا نيولي
انګريز له هندوستانه زياتې ګټې دي خوړلي

اخته په څه جنجال دي، چې ځوك ناست دي ورته غلي
اسلام چې چاكې نه وي دښمنان يې شي مسپلي

فرعون خو بچيان د اسراييلو دي وژلي
بوجهل صحابه هم له مكې نه دي شړلي

هر ځای كې كافرانو اسلامي خلك ځپلي
خلقيان د دوی په لاره نن سبا دي لېږدېدلي

تاريخ ته نظر وکړه چې دا تللي ثنګه تللي
د عقل ثنبلتنانو سره واړه دي تللي

فرعون د موسی په مقابل کې ثنګه شو؟
سردار د ظالمانو په کابل کې ثنګه شو؟

موسی سره همساوه، خو فرعون ته بلا شوه
بوجهل ته د بدر غزا جوړه کربلا شوه

دولت که دبدبه وه، د قارون ټوله تباه شوه
موسی چې لاس اوچت کړلو، حاصله يې مدعا شوه

داود ته له ملکرو ثنګه جوړه کودتا شوه!
بيرک ته پيښه بده، د خلقيانو په سلا شوه

تره کي يې چې بچ کړو، د قادر دغه جزا شوه
جوړه ښه ياري د غلو وه، چې په وېش راغله تالا شوه

که جوړه پښتنو ته له خلقيانو ثه وبا شوه
دا ټوله د نفاق له بد مرضه را پيدا شوه

دې سيمې د اسلام کې د هورا چيغه بالا شوه
مسلمه دا په دې، چې د اسلام خواته دې شا شوه

مقصد دې نبي خپله، که رښتيا د خداى رضا شوه
دا زېرى مې درباندې ښادي تل ترتله ستا شوه

ځګونه ځي له منځه او به پاتې شي صفا
کافر له منځه درومي، خو مسلم غواړي رښتيا

مسلم که په رښتيا له واړو بدو شي بېزاره
لوى خداى ته توبه ګار شي، دوډۍ ونه خوري مرداره

يو بل ته نيت په خير شي اسلامي وروروۍ لپاره
ميدان د قربانۍ ته شي حاضر د خداى په لاره

پلرونه ګوري زوى ته، بچې هم تېر شي له پلاره
کړي ترهه تمه دواړه له قهار غني غفاره

نه داسې لکه نن، چې هره سيمه نا قلاره
څوک غېږ کولى نه شي ديوه کافر له داره

دا سیمه د مسلم ملت، له خوبه شي بیداره
ترلاسه کړي یو ځلې بیا مصري، توره آبداره

زړور لکه زمری شي، نه ویرېږي له ګوزاره
ملا وتړي محکمه، شي میدان ته وارله واره

برید وکړي په کافرو د اسلام په سمه لاره
مطلب یې قربانی وي د بشر د خیر لپاره

کافر به شي سرکوزی، په لندن او امریکا کې
روسان به «نبي خېله» ماتې وخوري بخارا کې

# «تره کی» څوك دی؟

ما لا مخکې دا ویلې کله په زړه منځه تللی
او خړسپي د لېوه مل يې په چلول کې ځای نیولی

اوس پخپله لېوه راغی، د شپانه ښکلې څېره کې
ځکه هر يو مسلمان يې څه ناڅه دی وردا ړلی

د کافرو مددګار دی استعمار ته کړې کارونه
د ښځې په څېر سپک دی چې ايمان يې ما تللی

دی په اصل کې دی څنګه، چې شرف ورته بد ښکاري
همېشه رذیل پرورده رذیلانو ته ښاغلی

ده ته دوست دي هغه خلک، دښمنان چې د اسلام دي
او دښمن ورته بیا ښکاري، چې اسلام دی چا منلی

سور بېرغ يې دی په لاس کې د روسانو پيروي کا
د هورا په آوازونو هر سرې دی، پېژندلی

په روسانو به وپلوري، دا هېواد که لاس يې برشي
هم د دې مقصد لپاره يو يې بل ته لمسولی

په ځان وايي لعنتونه دوی اخوان الشياطين دي
مسلمان د دوی له لعنه ګوره څنګه رب ساتلی

«نبي خبله» پسې پاڅه د جهاد د غه موقع ده
هغه څوک به دې ملاتړ کا چې رښتيا يې خدای منلی

# خلقي د چا نوکر دی؟

مسلمه غلی غلی چې له ځان سره بنګېږي
پوه نه یم، چې دا ولې بیا غزا ته نه پاڅېږي

یا غلی شه کافر شه، د خلقیانو سره مل
رښتیا لکه تره کی، مسلمان ملت ته غل
یا اور کړه د ګولیو، په دهریانو باندې بل
میدان د کارو زار کې، سره واړه که تل ول

له خدایه که وېرېږي، نو له دوی به نه وېرېږي
پوه نه یم چې داولې، بیا غزاته نه پاڅېږي

دوی څه لوبې رااخستي مسلمانه ورته ګوره
چې څوک خو مسلمان دی ورته کاندي ستوغه سپوره
د دین په لار خبرېږې، واړه وشړل له کوره
نه شرم کړي له خدایه او نه ترهه کړي له وروره

که نور شي داسې غلي، مسلمانه نو ختمېږي
پوه نه یم چې دا ولې، بیا غزا ته نه پاڅېږي

یو لاس شئ سره پاڅئ د قرآن تر سیورې لاندې
مسلمه که شي لاندې، یې له خدایه سره باندې

دوی لوبې په اسلام کوي او ته لا ورته خاندې
له داسې ژونده تېر شه، نو له دوی نه به شې وړاندې

د دوی په حکومت کې، چې لوړېږي هو مره لوېږي
پوه نه یم، چې دا ولې بیا غزا ته نه پاڅېږي

د دوی په حکومت باندې چې و نه کړې باور
ببرک و که داود و او لا څنګه شو قادر[1]
چې کفر کې وي مخکې هغه وي پکې افسر
خلقیانو کې حساب شي چې له خدایه شي منکر

روسانو ته به ناڅې که د دوی په ډول ګډېږي
پوه نه یم چې دا ولې، بیا غزا ته نه پاڅېږي

نوکر شي د روسانو، چې خلقي شي حقیقت کې
دښمن شي د اسلام، مسلمان نه پرېږدي په پټ کې
کار و نه کړي هغوی ته په دې پاک محیط ملت کې
مسلمه څنګه پروت یې لا تر اوسه په غفلت کې

بیدار که ورته نه شې، «نبي خېله» نو سپکېږي
پوه نه یم چې دا ولې بیا غزا ته نه پاڅېږي

[1] جنرال عبدالقادر.

# فرصت له لاسه مه باسئ

هر سړی پوهېږي چې خلقیان بچي د چا دي؟
دوی ولې بیا مېن په سره نشان او په هورا دي؟

دوی ولې عربي ژبه ویستلې له مکتبه؟
صفت د سوشلېزم کې د روس غوندې لګیا دي

قرآن سره خلقي سرود لازم ګڼي دا ولې؟
دوستي ته د روسانو وړاندې شوي له هر چا دي

مشران یې په «ملګري»[1] باندې ولې افتخار کړي
رسمونه دا د چا دي، رواجونه دا د چا دي

څه عجیبه وخت دی، چې په دوی باندې ور دانګو
ځای په ځای یې وینو، چې بې واره وار خطا دي

نه ښایي فرصت چې، عجیبه له لاسه وباسو
دوی په اقلیت کې لړ و بړ و ته رسوا دي

---

[1]- خلقیانو یوبل په «ملګري» مخاطبول

مونږه چې د خدای لاره کې، لاس توري ته نه کوو
وړاندې په کارونو کې، نو ځکه بې حیا دي

کفر ته خدمت کوي او چغې د اسلام وهي
هومره چې دوه رنګي دي د نورو په سلا دي

هلئ پسې پاڅئ او فرصت له لاسه مه باسئ
دا د «نبي خېل» خبرې تولې په رښتیا دي

# د جهاد موقع ده

بيا د خزان باد راغی په سيمې د سرو ګلو
ځکه نو کارغانو ځای نيولی د بلبلو

دا د اسلام سيمه د اسلام د پيروانو ده
دې کې څه ځای نشته د اغيارو د راتللو

اوس چې غاصبانو پرې د غصب پنجې ايښې دي
وخت دی مسلمانه، د سرو وينو تويولو

نن که وېره ولرو، رښتيني شهادت څخه
خدايږو خلاص به نه شو، د پرديو له منګولو

هلی را ولاړ شئ دوی ته شا او دین ته مخه کړئ
نه بنایي مسلم ته یو قدم د شا ته تللو

واخلئ توره سپر او د جهاد میدان ته ودانګئ
مه کوئ صرف نوره، د دوی په مرګ وهلو

نن په مسلمان د امتحان موقع راغلې ده
نشته مسلمان ته اجازه د ځنډولو

بل ته نصیحت کړې «نبي خیله»، خپله پورته شه
ورکړه په عمل کې امتحان د حق منلو

# هر سړی پوهېږي

دي خلقيان بې دينه او خلقياني دي بې ديني
هر سړی پوهېږي، چې غوا توره پی یې سپيني

شپه که وي تياره، نو مونږ هم تولې په شمار وينو
مونږه انسانان يو او د هر سړي کردار وينو
دا خلقي دولت ځکه نو کرد استعمار وينو
سور بيرغ په لاس کې او هوار يې چې شعار وينو

دي غريب ملت سره وعدې کړي دروغيني
هر سړی پوهېږي، چې غوا توره پی یې سپيني

نن چې څه نا څه قدرت، په لاس کې د خلقيانو دی
نه پر بېږدي شريف، وايي دا وخت د رذيلانو دی
مود يې د نا ولو بېر ښتو کافرانو دی
دا تره کی مل ځکه رښيتنی د روسانو دی

شپې ورځې تېر بېږي د مسلم ملت خواشيني
هر سړی پوهېږي، چې غوا توره پی یې سپيني

هر سړی پوهېږي، چې دوی واړه کافران دي
دوی د انسانانو په ښېره کې، نور شیان دي
اصل کې رښتیا ده، چې د نورو نوکران دي
ځکه راوتلي وړپسې مسلمانان دي

نن دی که سبا دی، تویوي به د دوی وینې
هر سړی پوهېږي چې غوا توره پی یې سپینې

وایي په دروا غو باندې شعر خوندور شي
ووایه عسکرته، چې ضابطه، نو زړور شي
وایي «نبي خېل» په دې زما کله باور شي
مس چې په درواغو د سرو زرو برابر شي

زړو ته شي دننه، چې وینا مې ده رښتینې
هر سړی پوهېږي، چې غوا توره پی یې سپینې

# قرآني حکم

نن بيا په مسلمان باندې راغلی امتحان دی
زر به شي برسيره منافق که مسلمان دی

جوړه له اسلامه يوه سره شانې سکروټه شوه
دوړ راته ښکاري د مهدي اخرزمان دی

لراو بر وتولو خود کفر ملا تړلې ده
پاتې ورته ځکه مسلمان هک و حيران دی

دورد وحشت دی د اسلام په توره بچ به شو
دا وحشت زمونږ افغانستان ته را روان دی

دلته د اسلام په نوم کافرو ته کارونه شي
دا خلقي دولت هسې ماهر لکه شیطان دی

چغه د هورا خو نه پښتو نه شریعت مني
بیا تره کی ځنګه لا پښتون او مسلمان دی؟

وسېځئ په اور هغه بېرغ چې د اسلام نه وي
لاس کې د روسانو د انګرېز که د جاپان دی

پورته کړه نشان د پاک اسلام له تکبیرو سره
پاخه «نبي خېله» چې دا حکم د قرآن دی

# د لستوڼي مار

ورځه میدان د جنګ ته که ایمان درسره وي
مسلمه نن دې وار دی که وجدان درسره وي

ورځه ورځه ورځه، چې له کافرو په څنګ نه شې
دې لاره کې به مل هر مسلمان درسره وي

هر څوک چې د خلقیانو ملاتړ کړي منافق دی
دوکه یې په خوله نه شئ که خپلوان درسره وي

دا کار خو د نفاق و، چې کافر دلته مېشته شو
دا ده ورباندې نه شئ که ځوانان درسره وي

ځان ساته له کافره، منافق نه حذر وکړه
جور و ګوره دا حکم که قرآن درسره وي

یوازې د خپل ځان ساتنه کله ده ممکنه
غم خور شه د جهان که غم د ځان درسره وي

اخر به دې تباه کړي که له بدو سره مل شې
ولې وي که داود وي که خلقیان درسره وي

چیچلی «نبي خیله» نن سبا راته ښکاریږي
لستوني کې دننه که ماران درسره وي

# د خلقيانو مل مسلمان ته!

دا څنګه مسلمان يې، دښمن د مجاهده
کافر ته سلامي يې، چې يې وګورې له ورايه
اسلام دې څه شو وايه؟

نوکري يې د خلقيانو
دښمن د عالمانو
يې مل د شرمښانو
پوه نه شوم منافقه چې په کومه لار روان يې
دا څنګه مسلمان يې؟

کوې چې عبادت
مطلب دې وي شهرت
چې وګټې دولت
شيطان در سره مل دی عقيده دې ده فاسده
دښمن د مجاهده

لـــه چانـــه، نـــه شـــرمېږي
روســـانو نـــه وېرېـــږي
د دوی پـــه ډول ګـــډېږي
حيا دې ټکی نه شي، نه له خلکو نه له خدايه
اسـلام دې څـه شـوه وايـه؟

تـــل ســـتايـــې کـــافران
د ديـــــن مخالفـــــان
بيـــا هـــم لـــولې قـــرآن
څېره دې د انسان ده او په پټه کې شيطان يې
دا څنګـــه مســـلمان يـــې؟

پـهـــرې کـــړې د خلقيـــانو
دښـــمن يـــې د غازيـــانو
جاسوســـه د دهريـــانو!
دا ستا بنه قسم دی، له خلقيانو ده هم بده
دښـــمن د مجاهـــده

مســلم ملــت تــه غــل يــې
خــر ســپی د لېــوه مــل يــې
کــافروکــې منحــل يــې

هورا ته په چکچکو دې دین و بایلو بې ځایه
ایمان دې څه شو وایه؟

سرزوری او جاهل یې
اسلام نه چې غافل یې
محفل کې یې داخل یې
نارو د تکبیرونه معلومېږي پښېمان یې
دا څنګه مسلمان یې؟

راځه سم مسلمان شه
د دین په لار روان شه
له دې لارې قربان شه
دوستي نه لاس په سر شه د اسلام له معانده
دښمن د مجاهده

پخپله مجاهد شه
دښمن د هر فاسد شه
د دغو معاند شه
دا پند د «نبي خېل» دې غوږ کې ونیسه تر پایه
ایمان دې څه شو وایه؟

## د خلقيتوب فارموله

ډېر دی نا قلاره شاني ژوند د مسلمانو
واکي دقدرت چې شوي ترلاسه د خلقيانو

خدای رسول چې هېر کړي، نو خلقي هله بللی شي
دغه فارموله ده ورته ايښې ملحدانو

ځکه خو ملاتړ د سوشلېزم به ښکاره کوي
کړې منافقو مرسته تل د کافرانو

نه شي څوک منلی په اسلام کې له اسلامه غیر
هغه قوانین چې ورته ایښي فرنګیانو

دا ملت مسلم دی د اسلام په لاره مخکې ځي
دوی ته ضروري ده رهبري د عالمانو

ځکه نو خلقیانو عالمان له منځه وویستل
کفر ته چې سم کړي دا ملت د مسلمانو

ځکه خو بانجان ته غوښه، کفر ته اسلام وایي
دا غریب تره کی، چې نوکر دی د روسانو

نه شي په دلیل، لکه فرعون سمېدی نه شي
توره د عمر (رض) پسې را پورته کړئ ځوانانو

چیغه د هورا کړئ زر بدله په تکبیر سره
دا د «نبي خېل» خبرې ومنئ یارانو

# څه باید وکړو؟

څوک د روسانو خدمتونه کوي
څوک امریکا ته امیدونه کوي

تالا والا مسلمانان شو ځکه
رسوا رسوا په ټول جهان شو ځکه

ځیني اخته په رشوتونو وینم
دښمنی جوړې دي ظلمونه وینم
دلته د غیر دین کارونه وینم

له بدو چارو تمیدلی نه شي
مسلمان ځکه وړاندې تللی نه شي

دیني تعلیم نه بې خبر پاتې دی
بې نظمه ګرځي پخپل سر پاتې دی
ځکه دنیا کې دربه در پاتې دی

باغونه چیرې بې باغوانه نه شي
اسلامي ژوند خو بې قرآنه نه شي

يو د بل سپکه پسې سر دي، کنه
ظالمان دوی کې معتبر دي، کنه
ځکه همېش د بل نوکر دي، کنه

چېرې اسلام او مسلمان چېرته دی؟
مسلمان چېرته او جهان چېرته دی؟

نن سبا ځکه بې عفته شولو
په دې نړۍ کې بې عزته شولو
هر چاته پړ او ملامته شولو

چې د اسلام په ضد کارونه کوي
څوک د روسانو خدمتونه کوي

قرآن ترې پاتې شو پیسو ته ګوري
تمه کې ناست د بل لاسو ته ګوري
لکه نوکر د بل کاسو ته ګوري

د فرنګيانو غلامان شو ځکه
تالا والا مسلمانان شو ځکه

ځکـــه ريـيس يــېپ منـــافق شـــانې وي
يـــا خـــو کـــا فريـــا خـــو فاســـق شـــانې وي
لکـــه بـــارق[۱] او دلايـــق[۲] شـــانې وي

کمونســـتي ســـوچه اســـلام گڼـــي
ســـاز و نڅـــا هنـــر د قـــام گڼـــي

څـــوک چـې پـــه دې فـــن کـې مـــاهر وکنـــه
اول «ولـــي» دويـــم «ظـــاهر» و کنـــه
داود لـــه دوا ړو نـــه جـــابر و کنـــه

تـــره کـــي وړانـــدې لـــه داود څخـــه دی
چې اصـل ونسـل يـې لـه نمـرود څخـه دی

کـــه مسـلمان شـان و شـوکت غـوا ړي بيـا
پـــه دې دنيـــا کـې تللـــی پـت غـوا ړي بيـا
لـــه نـــور جهـــان نـــه ځـــان اوچـت غـــوا ړي بيـا

ســـر دې قربـــان کـــړي لـــه قرآنـــه څخـــه
شـــي بـــه اوچـت پـــاس، لـــه اســـمانه څخـــه

---

۱ بارق شفيعي
۲ سليمان لايق

چې مسلمان په اسلام، ننګ ونه کا
د کافرانو سره جنګ ونه کا
له بدو چارو څخه څنګ ونه کا

تل به دښمن ته سلامونه کوي
څوک د روسانو خدمتونه کوي

نن چې څوک پند د «نبي خېل» نه مني
اسلام له کفره څخه بېل نه مني
د دين لپاره مرګ او جېل نه مني

پرې مسلط مرتد خلقيان شوي که
تالا و الا مسلمانان شوي که

## الحمد لله

پیل کېږي ښه کارونه، په الحمد لله
زیاتېږي نعمتونه په الحمد لله

تازه شي سره ګلونه په وږمو د پسرلي
تازه شي مړاوي زړونه، په الحمد لله

د حق لاره هېڅکله هغه څوک پرېښولی نه شي
چې سم یې شي فکرونه، په الحمد لله

جهاد ته چې ور درومي، بې خطره مسلمان
قوت یې مومي زړونه، په الحمد الله

دښمن تـه مسـلمانه، چلـنج ورکـړه د غـزا
تـول شـوي دي قامونـه، پـه الحمـد لله

ويښ شـوى مسـلمان دى، ملاتړلـى را روان
قربـان بـه کـړي سـرونه، پـه الحمـد لله

الحمـد لله چـې، فاتحـه ده د قـرآن
ډېـر پيـل دي سـورتونه، پـه الحمـد لله

احسان دى پـه تـا شوى «نبي خپلـه» د مولى
شـول ختـم دي شـعرونه پـه الحمـد لله

# د خدای ثنا

ستا یم که دې ستایم، که دې نه ستایمه، ستایمه
ستایم چې دې ستایم، خو چې څنګه به دې ستایمه

ستایمه خاونده، تـه څښتن زه دې بنده یمه
ستا پـه ستاینه کې بیرتـه پاتې شرمنده یمه

وایم، که څه وایم، نـو دا ستا ثنا بـه وایمه
ستا پـه ستاینه لویـه څښتنه ژوندی پایمه

تـه احد صمد یې، لم یلد ولم یولد یې تـه
تـه یې لم یزل او لایزال الی الابد یې تـه

ستا په درکې پروت یم په سجده لاس په دعا یمه
نـه لـرم اسره بلـه، بس تـا تـه پـه ژړا یمه

تـه رحیم رحمن یې امید ونـه شي بس تـا و تـه
بې لـه تا نـه خدایـه هیلـه وکړمـه بل چا و تـه؟

ډېر یم ګناهګار، خدایږو ټول ګناه ګناه یمه
بیا هم ستا بنده یم چې دې ستایم، خو دې ستایمه

ډېر دې له عذابه خدایه زه یمه په ترهه کې
تا به څه لیکلي وي ازل کې زما برخه کې

زیات مې امید ونه دې، چې هومره بې پروا یمه
ستا د مرحمت په هیله ژوند کوم هوسا یمه

تا چې راته راکړلو توفیق د بندګۍ خپلې
زه شوم هیله من الی الابد د ژندګۍ ښکلې

هیڅ نه یم که څه هم، زه به هر څه ځان ته وایمه
ته که خلوص راکړې نو، «خالص» به په رښتیا یمه

# ګوته په غاښ

ستا حسن ته دلبره يم حيران، ګوته په غاښ
يو زه خو حيران نه يم، ټول جهان ګوته په غاښ

چې تللې لا مکان ته د نبيانو شوې امام
د هر اسمان ملکو وکړو تا ته احترام
ملګرى دې جبريل د رته ولاړ و لاس په نام
شيدو او د شرابو دې کړ نوش د پيو جام

شول ټکه کائنات، ځمکه آسمان ګوته په غاښ
دوزخ او جنت هم، جن و انسان ګوته په غاښ

منمه خداى ورکړې وې موسى ته معجزې
همسا يې اژدها شوه، اژدهاوې يې خوړې
فرعون او قارون سره وسلې وې، هم پيسې
دا لويه معجزه وه، ټول يې کړل ذرې ذرې

قارون ځمکه کې ښکته شو روان ګوته په غاښ
فرعون د ایمان کاوه ارمان ګوته په غاښ

د ګور مړي ژوندي شول، د عیسی په دم دعا
یوسف علیه السلام د حسن نه وه انتها
ایوب (ع) غوندې صابر به په دنیا نه شي پیدا
بې مثله سلیمان علیه السلام شهنشاه

خو دې ستا لوړ مقام ته، ټول نبیان ګوته په غاښ
ستا حسن ته هک پک ماه تابان ګوته په غاښ

«خالص» یم ګنهګار، خو توبه ګاریمه راغلی
شیطان، نفس وهوی یم هرې خواته ځغلولی
که ستا په شفاعت د خدای کرم مې شي ملګری
بدي به مې نیکي، عملنامه کې شي لیکلی

په ورځ کې د محشر به شي، شیطان ګوته په غاښ
لعنت به په ځان وایي، کافران ګوته په غاښ

# حمد او نعت

په درکې دې منلي مخلصان دې نازولي
پوهېږمه ای ربه چې دوستان دې نازولي

یو لک څلرویشت زره زيات و کم پیغمبران
اسمان د نبوت کې ځلاند ستوري دي یکسان

په دوی کې اولوا العزم رسولان دې نازولي
درڅار شمه ای خدایه چې دوستان دې نازولي

موسی دې نازولی په امسا، ید بیضا
د ګور مړي ژوندي کړي، د عیسی په دم دعا

بللــي لا مكــان تــه مهمانــان دې نــازولي
پو هېږمــه اى ربــه، چې دوســتان دې نــازولي

چې زر كاله څوك بت ته په سجده وي پرېوتلي
كه يو ځلې توبه كړي ستا په دركې شي ښاغلي

قــديم رحيمــه خدايــه! بنـدګان دې نــازولي
خاونده مهربانـې چې دوستان دې نــازولي

جنت حورې غلمان دې كړل، نصيب د شهيدانو
برې او سر لوړي دې كړل په برخه د غازيانو

د ديــن پــه شمع سوځي پتنګـان دې نــازولي
يــاران دې نــازولي او دوســتان دې نــازولي

هر څو دې «نبي خېل يونس خالص» دى ګنهګار
توبــه مې ده خاونده يمــه تاتــه توبــه ګــار

نــازېږي حافظـان د خپـل قـرآن دې نــازولي
يــاران دې نــازولي او دوســتان دې نــازولي

# نعتیه وینا

ورځمه مصطفی خیرالبشر مدني ته
لاس اچوم لمن د پیغمبر مدني ته

ورځمه په زارو زارو به هلته کړمه ناري
چې ای د خدای رسوله! شولې وراني زمونږ چارې
د خدای په درکې وکوه سوالونه په څو وارې
چې سم کړې مونږه بیا د پاک اسلام په سمه لارې

راتا وکړې قافلې زمونږ رهبر مدني ته
ورځمه مصطفی خیرالبشر مدني ته

ورځمه نه تم کېږم، وسیله نه لرم بله
روضې د محمد (ص) کې به نارې وهم، چې هله
نښتي نن سبا مسلمانان دي یو تربله
خدمت کوي کافر ته، خپل وطن کې لا پخپله

لښکرې زمونږ اړې دي افسر مدني ته
لاس اچوم لمن د پيغمبر مدني ته

ورځمه چې تنګ شوی يم، زړګی خو مې نور چوي
چې ګورم مسلمان ته د کافرو ميندې روي
په دې فاني دنيا کې ترې جوړ شوي دي تور لوي
کافرو نه دوی مخکې د دوزخ په لمبو سوي

ورځمه نا وختېږي، وړم خبر مدني ته
لاس اچوم لمن د پيغمبر مدني ته

ورځمه خو که پرې مې ږدي، نږدې خپلې روضې ته
لاسونه به کړم وړاندې، د روضې ښکلې پنجرې ته
باران د اوښکو سر به «نبي خېل» کاندي سينې ته
وسله مې پکار نه شوه ځکه راغلم وسيلې ته

سوغات کې مې راوړی، ځکه سر مدني ته
ورځمه مصطفی خيرالبشر مدني ته

# نعره تکبیر

هسې درونـد دی لکـه غـر
هسـې روڼ دی لکـه لمـر
لـوړ تـر عـرش معلـی دی
ترېنـه ځـار شـه لـرو بـر
مقابـل کـې يـې خـوري مـاتې

طـاقتي تـوره او سـپر
ترېنـه ځـار د «نبي خيـل» شـه
مـورو پـلار او مـال و سـر

کـه چـا سـر کـړ ورتـه ښکته
پـه سرو کـې بـه شـي سـر
او کـه چـا خـو ورتـه شا کـړه
بيـا بـه نـه شـي مخـور
پـه کـافرو زلزلـه ده

مسـلمان تـه دی اختـر

«نبـي خېلـه» دا نـو څـه دی؟
دا دی الله اکبر

# په دغه زمانه کې

آخره زمانه شوه، غله او ښان وهي په بډه
د دې وخت منافق، مسلمانان وهي په بډه

د روس په غلامۍ کې ازادي د وطن غواړي
دا هغه پرچميان دي، چې خلقيان وهي په بډه

بېرک چې لوبې وکړې د امين په سر دا ځکه
فرعون د دې وخت دی، چې هامان وهي په بډه

دنيا هغه بوډۍ ده چې سينګار لري د ناوې
واړه زاړه ځوانان، واړه يوشان وهي په بډه

چې پير کړي لاره غلطه او دنيا ته په سجده شي
دوکه ورباندې نه شي، مريدان وهي په بډه

يو بل ته سره غله دي، خو دعوه کړي د يووالي
په نوم د «اتحاد» واړه سامان وهي په بډه

ځان ساته «نبي خېله» چې تا هم په بډه نه کړي
رهبر چې شي بې لارې رهبران وهي په بډه

# له زندانه

مه خانده ظالمه کړپهار د زولنو ته مې
ګوره نتیجه کې آخر کار د زولنو ته مې

تاته غرابي، کوته قلفي، مظلوم بندي ښکارم
ناځې د جنت حورې سینګار د زولنو ته مې

انس او جن لا څه چې پورته پورته اسمانو کې هم
غوږ ملائیکان نیسي شرنګار د زولنو ته مې

خدای چې راتـه وايي څه دې راوړه، ورتـه وایم بـه
دا پـه پښـو کـې وګـوره پرهـار د زولنـو تـه مـې

ستـا د ژوندانـه د دایـرې محیط کـه پـام وکـړې
نـن سـبا اړ شـوی دی پرکـار د زولنـو تـه مـې

مړ بـه شـې را پرې بـه وځـې او ملا بـه دې درماتـه کړم
دا قـدرت ورکـړی رب ګـوزار د زولنـو تـه مـې

خیز کړه «نبي خیله» پـه مـور چل باندې ورو دانګـه
زر کـړه ملتفـت ظـالـم، پیکـار د زولنـو تـه مـې

# اوسنۍ دنيا

اوسنۍ دنيا ته ګورم څه عجيبه ننداره ده
توره شپه سپينه رڼا ده، رڼا ورځ تپه تياره ده

ماتې لوټې فولادي شوې، ماتوي کلکې ډبرې
د فولادو تاب ختلی، که تبی که هر کاره ده

يعنې تيټ خلک او چت شول او چت پرېوتل د لاندې
د کوهي خوله شوله ښکته سر چپه هم مناره ده

د قيامت نښې راغلي، دنيا هسې رنګ نيولی
ګدايي له واکدارۍ نه، مزه داره دوباره ده

دا پښتون غیرتي قام و، چې بـه نورو خان بللو
اوس دا نورو واړه خانان دي، د پښتون مېنه خاره ده

دا په دې چې ځينو ځينو پښتنو، پښتو کړه سپکه
دوی پخپله ځکه سپک شول، چې پښتو يې هينداره ده

لرو بر پښتانه يو و، خو چې مونږ مهاجر نه وو
اوس چې مونږه مهاجر شو، روس ته جوړه تراره ده

د روسانو بچيان دلته کړي زمونږ په ضد خبرې
وران کاران دي دوی پخپله، کړې يې مونږ ته اشاره ده

«نبي خېله» دا ډمان دي دا د بل ډول ته نخښې
دا سازونه د دوی نه دي، د روسانو نغاره ده

# مینه او انسانیت

مینې، محبت چې کله بار له دې دنیا نه کړي
هیلې، ارزوګانې د بشریې پرېشانه کړي

جوړ له انسانانو شول ماران، چې مینه لاړله
نه خیر، انسانان شول شیطانان چې مینه لاړله
یو تربله خوري لکه وحشیان چې مینه لاړله

وینې تویول یې نن سبا ډېرې اسانه کړي
هیلې، ارزوګانې د بشریې پرېشانه کړه

یو څاڅکی د مینې نړۍ ټوله معطره کړه
راز د محبت و، چې ودانه یې لروبره کړه
لاړ چې محبت، نو مخامخ یې له خطره کړه

خپلې اندېښنې یې واره هېرې له انسانه کړي
هیلې، ارزوګانې د بشریې پرېشانه کړي

جوړه ځانځاني ده، يو تر بل سره دوستي نشته
وخت د چل او ول دی، له هيچا سره راستي نشته
زړونه سره بد دي تنګ راتنګ ځای د ناستي نشته

تېر چې شول له ښکلو، ښکلې يې تېرې له جانانه کړې
هيلې، ارزوګانې د بشريې پرېشانه کړې

سوی د هجران په سرو سکروټو، سوی سکور شومه
اور مې دی اخستی، نه خير، خپله باندې اور شومه
اوس چې مينه لاړه، مختورن د کلي کور شومه

مينې د «خالص» نه غمازانو چې پښېمانه کړې
هيلې، ارزوګانې د بشريې پرېشانه کړې

# د دله ګانو وخت

نه به شي مېږه نه به مېږانه ورته پاتې شي
نه به بيا د نرو په ځېر پانه ورته پاتې شي

نه به په کړه شمله بيا څوک ورته نر ووايي
نه به بيا د چنګ برېتو مستانه ورته پاتې شي

نه به د دوستانو په دوستۍ کې مزه وګوري
نه به له دښمن سره څه ورانه ورته پاتې شي

نه به تري حیا د سپي، سړي، واړه، زاړه وشي
نه به مجلسو کې سپینږیر تانه ورته پاتې شي

یو ځل چې دووس شي، ښځه واک ترېنه ترلاسه کړي
لور او خورېې بل سره روانه ورته پاتې شي

دغه مصیبت خدایه پښتون باندې را مه ولې
خیر که لا چاري له هرې خوانه ورته پاتې شي

سوځي «نبي خېل»، چې کله غټ غټ دووسان ویني
مړ به شي که داسې بې وجدانه ورته پاتې شي

زه چې ورته ګورم وخت د دغو دله ګانو دی
دا دنیا آخر به ما او تانه ورته پاتې شي

# پښتنه مجاهده

هغه ده چې راغله ګرېوان ځيرې کوي شور
خدايږده چې دا څوک ده او روانه ده کوم لور؟

هاغه ده پښې توري سپينو واورو کې را دومي
وه ملګرو ګورئ، چې را خېژي په پيچومي
تور پيکی يې پروت دی په سپين مخ لکه دلومې

لاس کې يې نيولی په سرو وينو ککړ لور
خدايږده چې دا څوک ده او روانه ده کوم لور؟

پوه نه يم چې ولې ګرېوان څيرې ژړه غونې ده
ولې سپينو واورو کې پښې توري راختونې ده
څوک يې دي وژلې که مظلومه تښتيدونې ده؟

خوله يې کيلې شوې، ورته بل کړئ اول اور
خدايږده چې دا څوک ده او روانه ده کوم لور؟

خورې وايه څه پېښه د رشوې، چې بې وارې يې
څوک يې، څوک دي شته دي او که ستوې خوارې زارې يې
چېرته ځې روانه، وايه ولې په دې لارې يې؟

مونږه مجاهد يو، تاته ګورو لکه خور
خدايږده چې دا څوک ده او روانه ده کوم لور؟

ورونړو مجاهده يم، دا لور دي زما توره
ما په دې لاره، په ملحدانو مور کړه بوره
نه لرمه سياله، نه ترېور او نه ترېوره

وبه کړم قصه درته که غوږ و نيسي نور
خدايږده چې دا څوک ده او روانه ده کوم لور؟

زه یمه مهتاب به نازولې لور د خان
ماته وه معلومه، سپینه لاره د قرآن
زه ومه پرده کې، بې پردې چې شوې زنان

هلته یو یتیم خدمت کوو زمونږ د کور
خدایږده چې دا ځوک ده او روانه ده کوم لور؟

پلار مې دا یتیم لکه خپل زوی به نازولو
هرځای ته چې تلو، نو دا یتیم ورسره تللو
وریې کړو مکتب ته، نو چې شه یې وروزلو

لاړو پرچمي شو له روسانو سره ورور
خدایږده چې دا ځوک ده او روانه ده کوم لور؟

راغی یو شپه، انډیوالان وو، ورسره
نور خلک لاځه، چې دوه روسان وو، ورسره
توري تفنګچي، د جنګ سامان وو، ورسره

مړیې زما پلار کړ، مور او خور سکني ورور
خدایږده چې دا ځوک ده او روانه ده کوم لور

ماتـه يـې وی پـاڅېږه چـې روسـانو تـه ورځـو
هلتـه بـنـه مېلـه ده، بـنـو ځوانـانو تـه ورځـو
پرېـږده پـرده لـرې کـړه، يـارانو تـه ورځـو

شـته دي شـرابونه، ورسـره هـم تـنـګ ټکـور
خـدايږده چـې دا څـوک ده او روانـه ده کـوم لـور؟

مـاوې دوی دي لاړ شـي زه بـه تـا سـره ورځـمـه
ځـاردې شـم لـه تـورې، چـې دې کړلـمـه بې غـمـه
زربـه لکـه نـاوې، ورتـه ځـان سـمبالومه

تابـه پـه محفـل کـې، د يـارانو نـه کـړم سـپـور
خـدايږده چـې دا څـوک دی او روانـه ده کـوم لـور؟

لاړمـه دتنـبـه، دې لاره تـه مـې کـړو لاس
سخت مې پـه سينه، د دې دووس کړلـو ورخـلاص
کـورم چـې شـټېږي، لکـه سپـې هسـې خنـاس

راغلمـه دېخواتـه کـه پيدا کړمـه غمخـور
خـدايږده چـې دا څـوک ده او روانـه ده کـور لـور؟

شپږ مړي په کور کې، مې پراته دي شهيدان
مور و پلار، دوه خوېندې او دوه ورونه صغيران
تاسې زما ورونه، که د دوی و کړئ پرسان

پاتې درته نه به شي همزولو کې پېغور
خدا يزده چې دا څوک ده او روانه ده کورم لور؟

دې قصې مو واړه مجاهد کړل، جګر خون
مالګه وه تازه يې کړل زخمونه، د لړمون
و مو کړ د ښمن سره د شخړې کلک، تړون

تنکنده غرمه وه، چې جګړې واخېستو زور
خدا يزده چې دا څوک ده او روانه ده کوم لور؟

ګورئ د خدای کار ته، چې وعده يې کړه تر سره
مونږه بريالي شو، اوازه شوه لرا و بره
هاغه ده چې حق، د باطل ماته کړه ککره

ښخ مو شهيدان کړل د بې بي مهتابې خور
خدا يزده چې دا څوک ده او روانه ده کور لور؟

بېرتــه راستانه شــو، دوه ټانکونــه راســره
راغللــو مرکــز تــه، څــو توپونــه راســره
شــل تنــه بنديان او دېرش اسـونه راسـره

مـــونږه مجاهـــدو کـــې زخميـــان وو درې څلـــور
خـــدايږده چـــې دا څـــوک ده او روانـــه ده کـــوم لـــور؟

توپـــو، طيـــارو مـــو، پـــه مرکـــز بـــل کـــړه اورونـــه
جوړيـې کـړو محشـر، خـو اوس د خـداى ګـوره کـارونـه
غـږ د مجاهـد شـو چـې «خالصـه» زمـونږ ورونـه

واړه دي بـــچ شـــوي دوه جازونـــه شـــو نســـکور
خـــدايږده چـــې دا څـــوک ده او روانـــه ده کـــوم لـــور؟

# مبارکي

نن خو چغې دي ناري دي، یا دوی نواز شریف
که خواران دي، که خانان دي، نازوي نواز شریف

مبارک مبارک وایي، که خواران دي، که خانان دي
په بناغلو کې بناغلی، شماروي نواز شریف

چا دی ځوان قاید بللی، او چا فخرِ پاکستان
ځیني ځینې هم لا شته چې، ردوي نواز شریف

که اسلام پسې روان شي، بریالي به مجاهد شي
لرا و بر به سره دواړه یو کوي، نواز شریف

مونږ نه ښه وايو نه بد يې، ځکه پته راته نشته
چې څه کېږي، څه به وشي، څه کوي نواز شريف

پاکستان ټوټه ټوټه دی، نه جوړېږي بې اسلامه
نه پوهېږم کوم آيين به، چلوي نواز شريف

که جهاد يې وپلورلو او پښتون قام يې تباه کړ
جايزه به د نوبل هم خپلوي نواز شريف

ضياء لاړو، ته به هم ځې، په څوکۍ چې غره نه شې
يوه ورځ به غرړو شي، چې نن ځي نواز شريف

د «خالص» مبارکي به، هغه دم کې ور تقديم کړو
چې عمل يې په محشر کې خلاصوي نواز شريف

# نیمګړی غزل

وسکونده بانه چې مې تازه د زړه زخمونه شي
یا چې پکې یاره جوړ د سرو وینو ډنډونه شي

راشه چې په ځای د سپیلنو درته لوګی شمه
مات چې د رقیب د بدو سترګو نظرونه شي

یا لکه ماشوم مې په سلګو کړه، چې لږ وژاړم
جوړ چې په زړه مخ باندې مې سره شانې زخمونه شي

## ښه او بد ژوند

خوند کوي مزې دي له يارانو سره ژوند
ورک شه، بې مزې شي غمازانو سره ژوند

ډېر عمر مې تېر کړو په خوږو او په ترخو کې
بيا به پيدا نه شي طالبانو سره ژوند

ژوند خو هغه ژوند دی، چې تېرېږي له ژوندو سره
اوس خو تېروو له مړدګانو سره ژوند

ځوک چې لا یموت خدای سره نه وي اشنا شوی
نه شي تېروی مسلمانانو سره ژوند

نوره مې توبه ده د دوه مخو له دوستۍ ځخه
نه شي د بازانو ، پیل مرغانو سره ژوند

پام کوه دو که نه شې ، د دې زماني بښکلي
نه خوښوي خپلو عاشقانو سره ژوند

ما فقیر چې لاس کړو د جهاد و خزانې وته
ځکه مې نصیب شو ، له مارانو سره ژوند

نور به «نبي خبله» له هغه چا سره یو لاس نه شي
غواړي چې د روس له مزدورانو سره ژوند

# پښتون او غلامي

زه يمـه پښـتون مـا پښـتنې شـيدې رودلـې دي
مـا پخپلـو سـترګو پښـتنې مينـدې ليـدلې دي

زه يمـه روزلـى خپلـې مـور د پښـتنو پـه څپـر
زه کتلـى نـه شـم پښـتنو تـه د پـردو پـه څپـر
زه بـه خـورم خـوارۀ د انسـانانو د خـوړو پـه څپـر
هيڅکلـه کاسـې د بـل څټـى نـه شـم دسپو پـه څپـر

ځکـه مـې يـوازې د پـاک خـداى احکـام منلـي دي
مـا د بنـدګانو بنـدګۍ تـه بـد کتلـې دي

ځوک چې د بنده قانون مني د بل غلام به وي
تل به وي سر ټيټی په سيالانو کې بدنام به وي
خوري به د ورور غوښې، لکه سپی د ښمن د قام به وي
پاتې د تره کي او امين په څېر ناکام به وي

داسې نامردانو خپل قامونه شرمولي دي
دوی هم بيا له خپله بادارانو ځملولي دي

دا منو چې قام خو دی يو جسم، سره شليږي نه
دا مشهور متل دی، چې اوبه په ډانگ بيليږي نه
لاس پښنه چې گنده شي، نو دا جسم بيا رغيږي نه
بې له پريکولو نه يې، بله چاره کيږي نه

ځکه مونږ د سرو وينو مور چلو ته دانگلي دي
دغه گنده غړي مو، هر وخت له منځه وړي دي

دغه گنده غړي، څو زما د بدن غړي دي
د دوی له منځه وړل، خو بس تر ما پورې ترلي دي
تاته خير د ښمنه، تا په څه باندې پرېکړي دي؟
وه ظالمه هر څه دې، په زور او ظلم کړي دي

تانه کړم پوښتنه، څوک چې ستا په لاره تللي دي
تا په کوم اصول زمونږ هغه غړي وژلي دي؟

دا زمونږه بڼ باندې، لمبې د اور چې پورې شوې
لاړو وخت بدل شو، رڼې ورځې زمونږ توري دي
د پرې پاک لمنې پښتنې، پېغلې سر توري شوې
ستوغې سپکې سپورې را پسې خبرې نورې شوې

څوک شول مجاهد، څوک په سرو وینو لمبېدلي دي
څوک لا امریکا او اروپا ته تښتېدلي دي

نن سبا ناري وهي، نجیب چې مسلمان یمه
زه هم دا دنورو پښتنو په څېر افغان یمه
یم غلام د روس ځکه، د روس په لار روان یمه
زه هم لکه دوی، د کمونیزم نه پښېمانه یم

ما د ملي صلحې دعوتونه چلولي دي
دا مجاهدین دي، چې واړه غټېې وژلي دي

سکه دي که توپونه، طیارې د چا چلېږي نن
دا نیپام بمونه، وایه چا په سرو رلوېږي نن؟

شل لکه ځوانان خو، له هېچا نه، نه هېرېږي نن
ستا په دې خبرو، هغوی کله ژوندي کېږي نن

ته کله پښتون يې، پښتانه دې شرمولي دي
تا د روس نوکره پښتانه څومره وژلي دي

ټول به يو جسد شو خو روان چې شو قرآن پسې
پرېږدو غلامي او منو دې ترږې ايين و آن پسې
نور نه شو روان، دا تش په نوم باندې افغان پسې
دغو خرڅوونکو، د دې پاک افغانستان پسې

څوک چې «نبي خېله» د اسلام په لاره تللي دي
خدايږو چې، سرلوړي دې منزل ته رسېدلي دي

## وحدت دی که دوکه؟

وحدت دی هسې ګل چې نور ګلونه ترې شرمېږي
دې ګلالي ګل سره مغزونه تازه کېږي

یووالی او وحدت دی، چې هر څوک يې خوښوي
بېلتون دی، که شقاق دی عالمونه ځوروي

اسلام وايي کوم خلک چې وحدت نه قبلوي
پخپله خپل ځانونه له ګړنګه غورځوي

لېوان خوري هغه ګډه، چې له ګډونه بېلېږي
مشهور دی دا متل چې لرګي يو شي، نه بېلېږي

افسوس دی چې نن لوبې په وحدت دي را رواني
دا لوبې به زمونږه کړي ودانې خونې وراني

پوهېږو چې رښتیا د شهید وینې خودې ګرانې
نه کېږي د وحدت په پلمې دا وینې ارزانې

روس دی، که محلد، که مجاهد سره یو کېږي
وحدت عجیبه شیز دی چې هرڅه وربانديې کېږي

وحدت چې شي پلمه بیا نو کافر دی مسلمان
د صلحې په نوم جوړ شي، د «یونو»[1] لخوا پلان

دامونه او دانې به را خپرې کړي کافران
چې وتړي له پښو نه پکې دا مظلوم افغان

«خالصه» خدای دې ساته جهادونه دې خرڅېږي
چې څوک وي منافق نو له کافر سره یو کېږي

---

۱- د ملګرو ملتونو اداره. (UNO)

# پوچ کارتوس

ماوې چې بازدې خو تپوس وختو
په دووسانو کې دووس وختو

د زړه په وینو مې روزنه ورکړه
چې زړه ترې جوړ کړم خو پيوس وختو

ډېر مې تهولنه کې دروند وتللو
آخر کې سپک اندې د بوس وختو

په جهادي هدف يې لوبې وکړې
خدايږو له روس څخه چړوس وختو

د امريکا په ډالرو نښېده
د خداى له مرستې نه مايوس وختو

مونږ وې د ده له بخته مخکې به ځو
خو دې پخپله کې منحوس وختو

«خالص» د بل چانه ګيله نه لري
پوچ يې د خپل جېبه کارتوس وختو

# لړم او مار

پرچمیان دي که خلقیان دي
دغه ټول لړم ماران دي

چې په دوی باندې باور کا
احمقان دي، احمقان دي

دوه ملګري وو روان سره په لار
دیوه جیب کې لړم و، د بل مار

ډېرو خلکو ورته ووېل، چې دا مړه کړئ
په دښمن خو پکار نه دی اعتبار

دوی ویل چې مونږ دښمن ته دي ساتلي
دا وسله به مو اخر راشي پکار

عاقلانو وې، له بدو به بد مومې
د کرکټې بوټي نه نیسي انار

هندوانه به له حنظله څوک ونه خوري
نه به جوړ کړي له کونجکو نه څوک هار

دا کړې پوښتې به هېڅوک سمې نه کړي
سم کار به دي پيدا شوي پخپل وار

که هر څو اغزي له ګلو څخه تاو شي
په وربل کې به کېنږدي نجونې خار

خو دې دواړو وې چې مونږه بنه پوهېږو
په ځوانۍ کې له سپين ږيرو يو هوښيار

دلرم والا ويل هغه مار ګيرته
مار دې مړ کړه چې سم نه کوي رفتار

مار والا وې د ګجدمو ياري مه کړه
دالرم به دې په غم کړي ګرفتار

يو له بله دادنه وو، خو روان وو
نا ببره شوو داخل په يوه ښار

دي ښاريانو ورته تود هر کلي وکړ
ديارلس کاله ورته وو په انتظار

خو دوی دواړه سره ډک وو، پيل يې وکړ
جنګ جګړې باندې يې تود کړلو بازار

د ښاريانو بچي مړه، کورونه يې لوټ شول
څوک قربان شو له لړمه، څوک له مار

عالمونه دي حيران د دوی کار و ته
چا په خوب ليدلی نه و داسې کار

غواړي هريو چې نړۍ ته دوکه ورکړي
چې مونږ وژنو يو د بل لړم او مار

مار لړم دي، هسې دواړو پلمه کړي
غواړي دا چې افغانان کړي تار په تار

لويه خدايه دغه دواړه په لار سم کړي
«نبي خېل» دی له دې دواړو نه بېزار

# د پښتنو سيمه

پښتو ژبه شوه ډېره، خو پښتو شوه بې درکه
دا سيمه د پښتون، پښتنو خپله کړله سپکه

نن وينم پښتانه، په نورو ژبو باندې وياړي
خپل دود يې دی پرېښی، د پردو دودونه غواړي
پښتو شوله بورچنډه، هم يې کور شو لاړې لاړي
چې چېرته پښتانه دي، يو تربله سره داړي

مورچلو کې دي ناست او دښمني کوي په کلکه
دا سيمه د پښتون، پښتنو خپله کړله سپکه

منمه پښتو ژبه کې، نامتو شاعران شته
خانان او ملکان هم، پښتنو کې ځوانان شته
دا سيمه د زمرو ده، دلته اوس هم بازان شته
افسوس دی، دې ځنګله کې هم داړونکي لېوان شته

لیوان د استعمار، دا شرمښان پالي نن ځکه
دا سیمه د پښتون، پښتنو خپله کړله سپکه

اجمل غونډې شاعر وایه، چې ځوک دی پښتنو کې
غني به څوک پیدا کړي، د دې سیمې پرګنو کې
همداسې ادیبان لرو، پرېمانه نور په دو کې
پښتون ته د ښمنان ځکه خولې دي، په اوبو کې

ارمان چې د دښمن، له عنعنو نه حذر نه که
دا سیمه د پښتون پښتنو خپله کړله سپکه

مونږ راغلو د دوی خواته، دوی په سپیو دارلو
روسانو ځغلولو، بیا هم دوی و ځغلولو
چا مړه کړو، چا موټرې او چا مونږ وتښتولو
دې سیمې د پښتون کې، ځینو ځینو د ګلو

مونږ وود سرګلان، خو دوی را وویشتو په ځمکه
دا سیمه د پښتون، پښتنو خپله کړله سپکه

سل کاله باچاخان وې، چې شي سم دې پښتانه
خو دوی یې نصیحت، یو ذره هم نه مانه

د دوی د جفا غشي يې شول بنخ، په لړمانه
تړي راغي مرور وې چې دا نه دي پښتانه

«نسيم»[1] دې کور کې کيني، «ولي خان» دې توره وکه
دا سيمه د پښتون پښتنو خپله کړله سپکه

دامونږ وو پښتانه، شو د اسلام په لاره پاتې
روسانو ته مو ورکړه، د مولی په کرم ماتې
بې ننګه غلامانو يې کړې، سپورې ستوغې زياتې
که راشي «نبي خېل» ته، توبه ګار او ننواتې

بيا هم به شو يو لاس، که پاک مولی پرې رحم وکه
دا سيمه د پښتون، پښتنو خپله کړله سپکه

۱- د ولي خان مېرمن نسيم ولي.

# ماته هم غوړ شه

يتـيم پـه ژړا پـوخ دی، ژاړه ژاړه ای کابلـه
ژړېږه، څـو پـاک نـه شې، لـه نجیب و لـه کارمله

ژړېږه، څـو پـاک نـه شې لـه نـا تـاره د روسـانو
د روس لـه مزدورانـو ، لـه خلقیـانو پرچمیـانو
دوی هـم لکـه مینونـه مـونږ تـه پرېښي دښمنانو
دا هزاو هوز کابـل کـې دی، د دوی لـه پلویـانو

اسلام تـه چې رانـه شي، سره خوري بـه یو تربلـه
يتـيم پـه ژړا پـوخ دی، ژاړه ژاړه ای کابلـه

مـاران او لړمـان چې، پـه کوم کور کې وي پراتـه
نارامـه بـه وي تـل، د هغـه کـور واړه زاړه
پـاړو مـرګ دی لـه مـاره، دا متـل کـړي پښتانه
دې کـور کې مـونږ تـه زهـر دي، خـواږه مـاږه خـواږه

چې ولـي يـو تـر بلـه، کلـي کـور کـوې شـي کلـه
يتـيم پـه ژړا پـوخ دی، ژاړه ژاړه ای کابلـه

مونږ دلته وو، خو پاک موله روسانو کړې وطنه
زما په راوتلو، چې خو ښمن نه شې دښمنه
کابل آخر زمونږ دی، مونږ به يې وکوو پالنه
هر څومره که خچن خلک کړي وضع، کرغېړنه

ورکړي مجاهدو دي لاسونه يو تربله
کړو ورک به دښمنان، دې وار خطا نه شې کابله

کابله څوارلس کاله شوې، بټې د دوزخيانو
اوس هم لا تا کې پاتې نښانې دي د روسانو
پخپله تنظيمو کې ياران شته، د ملحدانو
بيرغ د اسلام لاندې، کړي پېښې د کافرانو

دو که به پرې ونه خوري، دا مظلوم ملت هېڅکله
يتيم په ژړا پوخ دی، ژاړه ژاړه ای کابله

مونږ غواړو د يتيم او کونډو رنډو کار شي، جوړ
هر وړی مهاجر او مجاهد شي، په نس موړ
خپل حق باندې قانع شي، نر او ښځه ځوان او زوړ
دا ګران افغانستان دښمنان بيا نه کړي ګوړ، ګوړ

هر کار مو په اسلام شي برابر، نو دا شي هله
چې خلاص له فواحشو به شې کله، ای کابله

منمه دین پرېږدي به، د چوکیو مینان
مجبور دي سره ساتي به، خلقیان او پرچمیان
او به چې کاندي خرې پکې بل، نیسي کبان
مظلوم ملت به چور کړي دا بد سري ظالمان

څوک نشته چاته ووایي، دا څه کوي او څله؟
تیم په ژړا پوخ دی، ژاړه ژاړه ای کابله

دا څوارلس کاله مونږ نیني د او سپنو چیچلي
دنیا ته مو په ډانګ پیبلې، داسې دي ویلي
حکمونه د اسلام چې دې هېواد کې نه کړو پلي
تر هغې به له دې مبارزې نه، نه شو غلي

کیدای شي «نبي خېل» چې خپله لاره کړي بدله
یتیم په ژړا پوخ دی، ژاړه ژاړه ای کابله

## مشر توب

چې په زوره مشري غواړي، مشر نه دی
یا مزدور د استعمار دی، یا حمار دی

مشري څه ده، بس د غم په تال ځنګل دي
چې مجبور نه شي، مشري کول انګار دی

په دنیا کې به یې خوب او خندا نه وي
په قیامت کې داسې مشر ګنهګار دی

چې هدف يې له مشرۍ نه دبدبه وي
خوار دی خوار دی خدايږو دغه مشر خوار دی

چې د خلکو خدمت و کا، نو سردار شي
خو چې خلک زوروي، سر يې په دار دی

د لوی خدای په لار چې نه ځي، مشر مه شه
مشر مشر دی، چې سم د خدای په لار دی

«نبي خبله» ځان دې سم کړه چې نور سم شي
عمل بنه کړه چې سم کړې دی ګفتار دی

# رغړي

سویانو ځان غلط کړو، د اوښانو سره رغړي
بازانو ځالي پرېښوي، له زاغانو سره رغړي

دا ګډي، بیزي ګوره، چي نن څومره بې حیا شوي!
په سپینه رڼا ورځ کې، د لېوانو سره رغړي

پرون یې ورته پلار نیکه، واړه بچي حلال کړه
نن هغه بې غیرته، د خلقیانو سره رغړي

ما ویل چي دا وطن به آخر خپله، دوی تباه کړي
لیدل مې مجاهد، چې پرچمیانو سره رغړي

غیرت څه شو، چوکۍ دپاره وینمه، یاران چي
سنیان دي ډلي ډلي، شیعه ګانو سره رغړي

«خالصه!» تا به هم کاندي بدنام، دا شرمېدلي
دروس په بدله کې، له غربیانو سره رغړي

# د نارنج ګل

ستي شوم، لولپه شوم، يمه پروت په سور انګار
يارانو ته بښکاريږم روغ رمټ او سلامت

ملاکه مجاهد وي، يا بزرګ د زماني
شيطان چې ورپسې شي او له عقله شي بهر
ييا کاندي فسادونو ته هر ډول بهانې
نه شرم نه حيا لري ملت کړي درپه در
بې چرسو يا شرابو يا نشه وي يا خمار
ستي شوم لولپه شوم يمه پروت په سور انګار

پخپله وي بې لارې، کوي بل ته نصيحت
يارانو ته بښکاريږم روغ رمټ او سلامت

دا مونږ چې درپه در خاورې په سر شو دا په څه؟
دا څوک وو؟ او د څه لپاره دوی وژلو مونږ
هېواد شو ولې وران، زېر و زبر شو، دا په څه؟
د سپو په څېر روسانو شپه او ورځ خوړلو مونږ

په عقل او په شرع نه جوړیږي دغه کار
ستي شوم، لولپه شوم، یمه پروت په سور انګار

خولړو او که بړو پښتنو وکړو غیرت
یارانو ته ښکاریږم روغ رمټ او سلامت

روسان خو دربدر شول خو دا مونږیو هسې پاتې
ودان نه شو هېواد او نور لا هم شو درپدر
کابل کې د پرې خونې، بې ګناه شولې میراتې
دا پاس کیمپ(۱) ته ورتېر شئ چې دي څنګه ښځې نر
ګبین شوه راته زهر او ملستنې شولو مار
ستي شوم لولپه شوم یمه پروت په سور انګار

لوتېږي رښا ورځ کې د تور سپروپت عزت
یارانو ته ښکاریږم روغ رمټ او سلامت

په کومه خوله به وخاندو یارانو، دا مو حال دی
له دې غمه به څرنګه ملت ته نجات ورکړو؟
د ګډو په څرمن کې، ځناور جوړ کړی چال دی
په څه به خپل عزت، ننګ او عفت ته نجات ورکړو

[1] په جلال آباد کې د مهاجرینو کمپ.

دا وني د کرکڼي راته، نه نيسي انار
ستي شوم لولپه شوم، يمه پروت په سور انګار

بدله چې صحنه نه کړو د خداى په مرحمت
چې خلکو ته ښکارو، روغ رمټ او سلامت

راځئ، چې شو يو لاس د خداى په لاره سره سم
بلبلو په ځېر نه شو، چې ګلانو ته به ناځو
جهاد له سره پيل کړو ورانډې واخلو يو قدم
د خولې خبرې پرېږدو، بسم الله کړو او ورپاځو
يا جوړ کړو دا وطن يا شو منصور غوندې په دار
ستي شوم لولپه شوم، يمه پروت په سور انګار

«خالصه» په بل څه خو نه جوړېږي دا ملت
يارانو ته، ښکارېږم، روغ رمټ او سلامت

# کوښه ډب

شیطان ترینه جوړېږي، چې انسان شي کوښه ډب
یاران شي ترې بېزاره، چې یاران شي کوښه ډب

نن دلته سبا هلته، کله سم او کله کوږ شي
سم جوړ شي منافق، چې مسلمان شي کوښه ډب

نوکر د استعمار شي، خپل ملت په نورو پلوري
د کوم هېواد چې پوه، ملي ځوانان شي کوښه ډب

وباشي قام کې ګډه، د ژوندون بېړۍ چپه شي
د چا چې ملایان او واعظان شي کوښه ډب

وطن ساتلی نه شي، په چوکۍ چې کړي جنګونه
ګېدړې ترینه ښې دي، چې زمریان شي کوشه ډب

د هرې کوڅې سپی شي، د هر چا ډول ته به ناڅي
ځان پلوري په پیسو، چې ماموران شي کوشه ډب

پرون یې د خلقیانو، نن زمونږ مداحي کړي
چې کله شرمېدلي، شاعران شي کوشه ډب

وجدان ترې کډه واخلي، لیاقت یې رذالت شي
کم سیالو نه کم سیال شي، چې سیالان شي کوشه ډب

«خالصه» خیر دې غواړه، چې شپې ورځې دې ترخېږي
که غله شي مجاهد او رهبران شي کوشه ډب

## د حقیقت، خیال او خوب تر منځ

د نارنج د ګل مېله وه، زه یې هم وم وربللی
ا دیدانو کې ملګرو، زه لاهم ومه شمېرلی

ډېر په مینه ور روان شوم، په جامو کې نه ځاېدمه
چې به زه هم ور سره شم، د وی محفل جوړ کړی ښکلی

پسرلی دی خوشحالي ده، زېړ ګلونه غوړېدلي
بلبلان وایي سندرې، بورا ګل ته نڅېدلي

هلته ګورم د باغ کونج کې، بیر سری بنده ناست دی
ما ویلې دا به څوک وي، ور روان شوم غلی غلی

ګورم ناسته ده تور سرې، له کوترې نه او تره
سر سر تور ور بل یې جړ دی او ګرېوان یې دی څیرلی

حق حیران شوم چې، دا څوک ده یو قدم شومه ور وړاندې
یو ما شوم یې دی په غېږ کې، په سرو وینو لمبېدلی

نا بیره مې کړه کریغه، چې دا څوک دی او دا ولې؟
داما شوم وایه د چا دی او دا کوم ظالم وژلی؟

بنیادم یې که شیشکه، دلته کله یې راغلې؟
څه درشوي، څه دې کړي چې دې پرېښي کور او کلی؟

ورو یې سترګې کړې را پورته، وی چې زه خو کابلۍ یم
دغه زوی مو مجاهدو، په راکټو دی ویشتلی

ورور خښتن او مشر زوی مې، هلته شول د خاورو لاندې
دا یو څو ورځې د مخه، زمونږ کور دی نړېدلی

احساساتو مې اوروا خیست، لاس مې پورته کړو اسمان ته
ما وې خدایه ته یې هلاک کړې، چې دا کور چا نړولی

دې وې چې شه «نبي خیله» بېرا مه کړه، مجاهدو
له روسانو په سرو وینو دا هېواد دی راګټلی

د ګل خوا کې خوا غزی وي، خزانې سره بنامار وي
دا متل مې څو څو ځلې، له مشرانو اورېدلی

ادیبانو ته مې مخ کړو، ما وې وخت د میلې نه دی
دښمن اوس هم لاس په کار دی، او هېواد دی غم لړلی

چې مې ستر ګې را رهې کړې، هاتف غږ رابانده وکړ
«نبي خیله» لمونځ قضا شو، عجیبه خوب دې لیدلی

# غدار

په يو کلي کې يو کس و، له ناکسو يې کړې زار
وی چې ګل يم، ګلالی يم، پکې و د سترګو خار

نه يې رنګ نه قواره وه، نه يې سره وو نه يې سپين
نه نسب کې و ښاغلی، نه له نورو و، هوښيار

نه يې ملاتړ لرلو قام کې، نه پخپله پهلوان و
هيڅ په هيڅ او تش په تشه و، له هرچا کلانکار

چې سحر به را بهر شو، نو يو غم به يې جوړ لو
په ظاهره کې انسان و، خو رفتاريې و د مار

هره ورځ به ګرېوان څيرې او سرماتی را روان و
چې فلانی يمه کنځلی او فلاني راکړو ګوزار

خو خبر به چې شوه سپينه، دغه کس به ملامت و
خو دې غټ حرامي کله، پخپل جرم کړو اقرار

مورو پلار ته يې ويلې، خلک ما په کاڼو ولي
کلی تول زما دښمن دی که کوڅه ده که بازار

شپې او ورځې مې دي سختې، بې له جنګه نه تېرېږي
واره، واړه دي بې لارې، دا يو زه يمه په لار

غبږ د صلحې به يې کولو او کول به يې ګوزارونه
ويل يې شخړې به جارې وي، څو چې نه شمه سردار

چې هر ځای کې به جنګ جوړ شو او د شر به آوازه شوه
يوې خواته به دا کس و، دا غدار دغه مکار

کلي کور ترې کنډه وکړه او دی پاتې شو يوازې
چې وژلی يې د چا ورور و، د چا تره او د چا پلار

سرګردانه ګرځېدلو، لرو بر تښو کوڅو کې
نری رنځ پرې حواله شو، څوک يې نه و مددګار

د مظلوم ازار چې اخلي، که خلقی که پرچمی وي
که بل څوک وي «نبي خبله»، شي اخر به خوار و زار

د غني غفار له رحمه، به محروم الی الابد شي
د لبوه په څېر به دی شي کومه تاله کې مردار

# زه ملنګ یم او ....

مممه تنبنتیږه راشه، مممه سره پخلا شه
زه به تا د پګړۍ ګل کړم، ته زما د لاس امسا شه

مممه وایه چې زوړیې، زه پنځه اویا کلن یم
اوس راغلی په ځوانۍ یم، ستا په دوه سترګو ممین یم
ممینه کې استاد یم، علامه د عشق د فن یم
ممجنون که نه یم، نه یم، خو فرهاد یمه، کوه کن یم

مملګری شه اشنا شه، زه به ستا شم ته زما شه
زه به تا د پګړۍ ګل کړم ته زما د لاس امسا شه

ممالیار نه تپوس وکړه، زه بلبل یم او ته ګل یې
دیوه ډنډر له پاسه، زه هم تل یم ته هم تل یې
دواړه یو، یو، دویي نشته، چې زه بل یم او ته بل یې
ممنې که نه منې یې، زه دې خپل یم ته مې خپل یې

ممرمه ممحبوبې، را تر غاړې یو ځل بیا شه
زه به تا د پګړۍ ګل کړم ته زما د لاس امسا شه

ستا جفا مې ممماته، روغه خوله کړه، ته لا خاندې
که‌دا ستا د زنې خالوي، ډېر به‌نور کړي، لاندې باندې
دجفا په‌لور دې پرې کړې، د ممين د زړه مراندې
مملنګ يمه‌ته‌خانه، ممماته‌يې لړ.وړاندې

ممه‌ځغله‌نور وړاندې، لړ.شه‌تم، يا را په‌شاشه
زه‌به‌تا د پګړې ګل کړم ته‌زما د لاس امساشه

نه‌تتله‌يم، نه‌ګونګې يم، خو غږېږم ستا په‌ژبه
مما سره‌دې کله کړې ده، وينا پخپله‌ژبه
نن وعده‌را سره وکړه، ديوبل يو چا په‌ژبه
چې سبا شي نو بيا نه‌وي صفايي بيا ستا په‌ژبه

ممه‌نوره جفا مه کړه «نبي خيل» سره اشنا شه
زه‌به‌تا د پګړې ګل کړم ته‌زما د لاس امسا شه

# د شهیدانو یاد

بیـا مـې چلېـدلی نـوی روح دی پـه بـدن کـې
شپه مـې تېره کـړې، د سـرو ګلو پـه دمـن کـې

سرې وینې روانې وې، د مښکو ښکلی بوی پکې
ښکلې ننداری وې، نظـارې وې ښکلي بڼ کـې

اخـوا د شیدو، شـهدو شـرابو او اوبـو ویـالې
دې خـوا د مرغـانو اوازونـه وو چمـن کـې

هلتـه د کـوثر ویالـه روانـه تکـه سـپینه وه
نـور خلـک راتلـل ورتـه نېکـان چې و کفـن کې

سـروجامو کـې راغلـه، یـوه ډلـه ګلابـي غونچـه
زه شـومه حیران چې دا جامې دي، د چـاتـن کـې

غـږ وشـو «خالصـه» مـونږه سـتا یـو شـهیدان بچـي
ټـول شـهیدان تاتـه، انتظـاریـو، دې وطـن کـې

سر مې چې راپورته کړو، تودې اوښکې مې تویې شوې
خدایـه! مـا شریک کـړې هـم، د دوی سـره رفتـن کـې

## نعت

غوښتل مې ستا صفت چې ولیکم نبي سروره
کاغذ قلم لا څه چې کړم لیکنه بختوره

کاغذ ته مې چې لاس کړ قلم پټ شو له هیبته
شعور او تصور او عقل هم لاړو له سره

مجاز او حقیقت استعاري شوې رانه هېرې
دنیا شوه رانه هېره فکر لاړو تر محشره

چا ستوری او چا بدر چا بللی لکه نمر وی
د چا د سترګو کسی چا به وې د زړګي سره

مجنون ته به ليلا وي او فرهاد ته به شيرينه
د زلفو مينان دي زلفې ستايي پيغمبره

په ګل او په سنبل کې لتهوي چې دې صفت څوک
د ځمکې تل کې ګوري څوک له عرشه چې دی بره

دا سخته راته ښکاري چې تا بل ته ورته بولي
هيچا ته ورته نه يې ای له تولو نه بهتره

د خدای ثنا کې څنګه چې تا ځان پاتې بللی
«خالص» به دې همداسې يو صفت نه کړي ترسره

# د بشر د خیر لپاره

تجربې ته رسېدلی او راغلی قانون هسې
څنګه غواړې چې د بل ژوند، ستا به هم شي ژوندون هسې

هنداره[1] ده بل څه نشته د غه عمر چې تېرېږي؟
چې بل غور ځوې کوهي ته، ته به شې سرنګون هسې

بد له بدو زرغونېږي اغزي نه نیسي ګلونه
دا خبره تثبیت کړې طبیعي، افلاطون هسې

چې پاک حق و ته سجده ږدي شریعت وي ګونده کړې
هر انسان لره پکار دی سر هغسې زنګون هسې

تجلا چې تړې د حق ځي حقیقت پسې مفتون وي
لوی څښتن ته قدر من وي لیلی هسې مجنون هسې

درد او سوز چې په کې نه وي، تاو د مینې نه وي سوی
څوک به څه کړي ینه هسې، زړګی هسې، لړمون هسې

د بشر د خیر لپاره اتفاق بنایي خالصه!
په اسلام کې ستایل شوی وحدت هسې تړون هسې

۲۹ میزان ۱۳۷۲ هـ ش

---

۱- خج پر وروستی څپه دی.

# مسلمان ته

د سر لـه وېښتو د پـر وي هـر سـرې سـره غمونـه
دا ځكـه چـې لـه سـره لـو ړ ختلـي ګناهونـه

سېلاب د معصـيت پـه سـر اخيسـتي انسـانان
كـه ښځه ده كـه نـر دى او كـه زوړ دى او كـه ځوان

دردونـه دي را اوري لانـدې كـړي يـې دى جهـان
فضـا ده خـړه شـوې ترېنـه نـه ښكاري آسمان

مسـلمه كـه ويښ نـه شـوې را روان دي سـېلابونه
لـومړى بـه لـه هرچـا نـه ړنګـوي دا سـتا كورونـه

منـى بـل قـانون نـه شـې، هـم دې پرېښـودو قـرآن
قـرآن كـه پورتـه لاړو نـو ورانېـږي بـه جهـان

نـن تاتـه وزګـار شـوى دى انسـي جـن و شـيطان
شـرمېږي بـه قيامـت كـې تـش د خـولې مسـلمانان

اسلام يې پلمه کړی، کوي کفر ته کارونه
کافر لپاره کړي له مسلمان سره جنګونه

پرون زمونږ ورونه کړل روسانو درپه در
ببرک، امين، تره کی، داسې نوريې وو نوکر

نن غواړي امريکه، شوله اسلامه لاس په سر
هندو او يهودان به رانه نيسي سمه او غر

زمونږ له مسجدونو جوړوي درمسالونه
مونږ خپلو کې لګيا يو، يودبل وهو سرونه

مونږ خړې ستر ګې ناست يو جوړوي دوی درمسال
دا کوم کتاب راوړی چې هندو شي هومره سيال

زمونږ کشميري مسلمان ورونه يې کړل حلال
دا ځکه چې مونږ خپله، يو دبل تښتوو مال

مرګ شه دی «نبي خيله» نه چې وينو دا چمونه
په دين مو کېږي لوبې او مونږ ساتو خپل سرونه

۱۶- ۴- ۱۳۷۷ هـ ش

# نه منل

مونږ به ورته ويلې خودې خلکو نه منل کنه
او س يې هغه تول شيان پخپله وليدل کنه

ماوې چې اوبه له سره خړې دي رڼې ېږي نه
جنګ په خاره ښه دی، ورته کړو مې دا متل کنه

هيڅ مې خبر نه ده او رېدلې او لاڅه کوي
خپلو او پردو به مې ترخولې پورې خندل کنه

ماويل چې لومړی مشر معلوم کړئ بيا ورمنډه کړئ
دوی ويل چې لومړی به د دښمن کړو ځملول کنه

دا يې نتيجه شوه چې څوک مړه او څوک په تېښته دي
هره ورځ لانيسي دا کدو يونوی ګل کنه

خلاص شوله روسانو خود غرب دام مو ترمخه دی
بول بول راته وايي چې شو بند پکې يوځل کنه

بيا نو د خلاصون لاره باور وکړئ چې نشته دی
بس هر يو به کاندي و خپل مشر ته بشکنځل کنه

دغه خودسري، وې او همدا د قدرت مينه وه
ورک چې شو کارمل ورسره وران چې شو کابل کنه

ګورئ چې کشران يې ملامت په دې جنګو نه کړي
امام يې چې .... شي مقتديان يې کوي .... کنه

اوس عجيبه لوبه ده روانه افغانانو کې
خوري او څښي به خپله او تشبېرې به په بل کنه

وراندې وراندې ځغلي بيرته نه ګوري چې څه کېږي
کوندې رندې پاتې دي دوی پيل کړل قتلول کنه

دې توره تيارې کې چې «خالصه» قدم وانه خلې
پړي او ماران سره يو شانې کړي چيچل کنه

۸-۳-۱۹۹۳م

# شهادت

ظلم خپرېږي نن سبا د عدالت په نامه
سودونه اخلي تاجران د تجارت په نامه

فسق و فجور دی رواج شوی آزادۍ په عنوان
ښځې بربنډې ګرځي په ځای شوې حریت په نامه

بدبختي راغله یو تربله سره خوري انسانان
جنګونه کېږي په نړۍ کې امنیت په نامه

د پخواني نفاق پیښې دي نن سبا پیل شوي
بازار تودېږي د دروغو شهادت په نامه

د چوکۍ مینې د افغان ولس په اوروا روو
خوار مجاهد چې لوبوي دوی د دیانت په نامه

خالصه پام کومه دې ډنډ کې چې ونه لمبېږي
په ختو ځان لړي واره د نظافت په نامه

خاوند دې خیر کړي «نبي خېله» انډوخر جوړ شوی
تېوته تېوته نه کړي ملت دوی د وحدت په نامه

۱۳۷۱ هش

# څه غواړم؟

نوم يې په نوم وکې اخيستى نشم و پرېږمه
خدايه! ته خو پوه يې چې ارزو مې څه ده، څه غواړم؟
څوک را خبر نه شي له خپل ځان سره بنګېږمه
هغه چې يې نور خلک غوښتى شي، هغه زه غواړم؟

ماته مې كاسه شوه په شرابو مسته مځكه شوه
خوار شې اى كلاله! له دې ماتو كنډولو سره
زه لا خراب نه وم چې خړوبه هلته مځكه شوه
وچولى مې وداغئ، له هسې قسمتو سره

هله ساقي زر شه شراب راوړه ګڼې لوېږمه
څوک را خبر نه شي له خپل ځان سره بنګېږمه
تېر كړه دا خزان چې د ګلونو سره غونچه غواړم
خدايه! ته خو پوه يې چې ارزو مې څه ده، څه غواړم؟

بوى راځي د عطرو خو چې وينم توري خاورې دي
ښايي د دې خاورو لاندې سور چمن د ګلو وي
وخت د پسرلي دى، خو هر ځاى كې يخې واورې دي
ورک به حرارت دلته له لاسه د مغلو وي

وایم مغلو اله د مطلب څخه تېرېږمه
نوم یې په نومو کې اخیستی نه شم وېرېږمه
ظلم او تعدي او د بل حق اخیستل نه غواړم
هغه چې یې نور خلک غوښتی شي، هغه زه غواړم

ژبې لاندې وایمه، ظالمه ظلم بس کړه نور
څو به دا ظلمونه ستا، زمونږه په کورونو وي
وګټه بهادر شه خپله پانګه یو په لس کړه نور
څو به دې بل کړي دا زمونږ په سر اورونه وي

ته لرې موټرې او زه لوڅې پښې ګرځېږمه
څوک را خبر نه شي، له خپل ځان سره بنګېږمه
خر، غوایه خو نه یم، چې به ستا څخه وابنه غواړم
خدایه! ته خو پوه یې چې ارزو مې څه ده، څه غواړم

ستا د قصر رنګ زما د پلار د رګو وینې دي
ماته ښه معلومه قرباني د پلار نیکه شوله
هر سړی پوهېږي چې غوا توره پې یې سپینې دي
سره او سپین یې ستاسو او زما برخه سکه شوله

خوله ښوروی نه شم او که نه خو ښه پوهېږمه
نوم يې په نوموکې اخيستی نه شم وېرېږمه
نن وي که سبا آخر به حق د پلار نيکه غواړم
هغه چې يې نور خلک غوښتي شي، هغه زه غواړم

وخت د ازادۍ دی نور منلی اسارت نشم
ته په کوم منطق باندې بادار او زه غلام يمه
نوره مې توبه ده، بيا به ستا په اسارت نشم
تل به ته آغا او زه ولاړ به لاس په نام يمه

لاس تر لاسه وروره، په ورورۍ، ژوند ته هوسېږمه
څوک را خبر نه شي له خپل ځان سره بنګېږمه
زه «خالصه» وروره د دې ظلم ورکېده غواړم
خدايه! ته خو پوه يې چې ارزو مې څه ده، څه غواړم

۱۵ اسد ۱۳۳۷ هـ ش

# دا پښتانه او دا د اسلام مدعيان

دا پښتانه ورونه، دا چې فخر په پلرو کوي
دا ميړني قام چې تل سيالي د ازمرو کوي

دا مسلمانان چې د اسلام نه قربانېږي تل
دا وطن پالونکي چې وطن فخر په دوی کوي

نن سبا په کومه لاره سم، په کومې لارې ځي
دوی روان په لار دي او که ځغلي خو بې لارې ځي

دين او پښتو دواړه غريبي خواري منلای شي
شپې ورځې پښتون مسلم په لوږه تېرولای شي

هو، پښتون، دينداره هم په خاورو بيد بدلای شي
هم يوې ډوډۍ ته زحمتونه تېرولای شي

نه مني پښتو، مسلماني، د غلامۍ کړې
نه د ذلت عمر، نه د بل د تپسورۍ کړې

نن خو دا دینداره پښتانه عمل کې پاتې دي
ځکه مقابل د تمدن کې مخ په ماتې دي

نه پوهېږم څو مره بې همته کور میراتې دی
ځوان ګڼې هغه څوک، چې د ښمن ته ننواتې دی

ویاړي په ذلت، خو په تن پټ او نس یې موړ شي
خیر دی که سر تور شي، خو د ختو کوریې جوړ شي

ډېر دي لپاره چې همرنګ د بادارانو شي
دا د آدم نسل په څېره د شیطانانو شي

دا مظلوم ملت یو ځلې مل د ظالمانو شي
دا مسلمانان روان په لار د کافرانو شي

خو، پروا د دین، نه د ناموس، نه د پښتو کوي
تل په خپل هېواد کې خدمتونه د پردو کوي

دا چې خیانت او ظلم زور، داړه ماري کوي
دا چې په ناحقه چوکۍ نیسي باداري کوي

دا چې غلې ناست دی، د ظالم طرفداري کوي
دا چې بنده ګۍ کې د لوی خدای ریا کاري کوي

دا ځلمي مامور او شيخ ملا زمونږ په کار نه دي
دا سې بې مسلکه شخصيت زمونږه يار نه دي

هو دلته هم، ځيني پښتانه ديندار ه خلک شته
دلته د اسلام او د پښتو لپاره خلک شته

سم روان هدف ته د قرآن په لاره خلک شته
دې ښکلي هېواد کې ځيني هم ديندار ه خلک شته

ننګ لري، ناموس لري، اسلام عالي شعار لري
دا غريب ملت يوازې دا خلک په کار لري

چيغې خو هر څوک د همدردۍ او مليت وهي
هر سړی ملا دی چيغې ټول د ديانت وهي

لوڅې او بربنډې خو هم لافې د عفت وهي
غل لکه کوربه په غله نارې د تو لعنت وهي

دا غریب ملت، دي مداریانو ته حیران دی
دا ځکه چې دوی نه، تعلیم پاتې د قرآن دی

څوک چې په رښتیا وي مسلمان، مسلمان پېژني
چاکې چې پښتو وي په عمل کې افغان پېژني

توره توریالی، سپینځلي زر، زرګران پېژني
چاکې چې ایمان وي، پیروان د قرآن پېژني

پټ به پاتې نه شي منافق، مسلمانانو کې
خپله به ښکاره شي غداران په افغانانو کې

۲۸ سنبله، ۱۳۵۰ هـ ش

# مساوات

نارينه ښځې يو شان دي دوه لاسونه د تولني
يا د ښکلې ميوه دارې دوه ښاخونه دي د ونې

يا د ستر گو تور او سپين دي، چې انسان پرې ښکلى ښکاري
يا د غارې دوه مرى دي، چې د ژوند پرې شي ساتنې

يا د شپو ورځو په شاني تل ترتله سره مل دي
نرې يو شان ورته اړ ده که شپې تورې ورځې سپينې

دواړه لاسه برابر دي انسان دواړو ته محتاج دى
چې هريو نه وي دابل بيا کوى نه شي پر قبضې

نر جامه ښځه يې تن دى، نر بدن ښځه جامه ده
يو دبل پت او عزت دى، نر پتمن ښځې پتمنې

زنا کار سپک ډاکو مار دى چې دا پت او عزت لوټي
نارينه دې خداى پمن کا، ښځينه دې شي پمنې

دوی د داسې جزا وړ دي، چې مرتد يې هم وړ نه دی
ځکه حکم يې د مرګ دی د دبروپه ويشتنې

«نبي خېله» خدای دې ساته له دا هسې سپک خويونو
د قيامت په ورځ دې بچ کړه له هم‌داسې شرمېدنې

دوا ړه لاسه برابر دي خو يو کينې دی او بل ښې دی
په کينې پوزې پاکو وبه، په ښي لاس کوو ليکنې

نر او ښځه برابر به د هېواد و دانول کا
نارينه که نه افي کا ښځې جوړې کړې بړستنې

له پستې نرمې پومبې نه ښځې ښکلې سپېنسې جوړ کا
نارينه ترې ټوکر جوړ کا، چې شي وړ د اغوستنې

ځوېرې (۱) ښځې وړې سنګر ته، درمل کړي هم د زخميانو
نارينه يا وطن ساتي او ناموس د ځان په وينې

نارينه شړې جامې کا او کيړې د ميخو ډکې
زنانه نازک بوټونه جامې اغوندي وريښمينې

---

۱- شومه، خواره

غوایه غوا سره یو شان دی، په یوه غوجل کې اوسي
خو غواګانې بڅی، پی کا، غوایان وړ دي د کرنې

لنده دا چې مساوات مو خامخا جدایي غواړي
مجنون بېل دی، فرهاد بېل دی، لیلی بېله له شیرینې

مساوات تو تـه تو تـه کړل اوس مهال افغانان دلتـه
مساوي يې قدر تونـه مساوي تويوي وينې

مساوي د چوکۍ مینې لـه اصلاح څخـه ویستلي
او «خالصه نبي خېلـه» ورتـه کښېنه لاس تـر زنې

۱۳ عقرب ۱۳۷۶ هـ ش

# افغانان شول مقلد د اروپا

ربه څه رسم و رواج شو را پیدا
چې په خوب کې هېڅ لیدلی نه و چا

نه په ویښه چا لیدلی وو په سترګو
نه بیان و چا ترې کړی لا پخوا

ما سوی له هغه پاک خیر البشره
چې یې کړی په رښتیا وه دا وینا:

هغه ویلې چې به داسې رواجونه
په دنیا کې نوي نوي شي پیدا

لباسونه به د ښځو په بدن وي
مګر دا چې وي به لوڅې هویدا

کاسیات او عاریات یې دي ویلي
مخلوقات به یې کوي تل تماشا

اوس يې ګوره د هغه قول صادق ته
لوڅې بنځې هرځای ګرځي د هرچا

چې بهر له کوره ووځي، ځان بربنډ کړي
و هر چاته بنکاروي خپله حيا

خو چې بېرته راشي کورته ځان مستور کړي
کوي ستر له فاميله د بابا

نه يې شرم نه حيا نه يې تقوی شته
نه وېرېږي له خالق بې همتا

هسې رنګ بې حيايي او رذالت دی
د شرابو څښل هيڅ نه بولي ګناه

د هريت او بې ديني له حده زيات شوه
افغانان شول مقلّد د اروپا

ربه څومره بد بختي راباندې راغله
ستا له وېرې چا له نه ورځي ژړا

ستا له قهر او له غضبه خبر نه یو
په یو آن کې به دنیا کړې ته فنا

د قرآن او د اسلام مسلک یې پرېښود
حیف شو دا چې مقلد شو د بل چا

موعظت د علماوو تأثیر نه کا
لکه وار و د فرعون او د موسی

۲۰ سرطان ۱۳۵۰ هـ ش

**يادونه:**

دا لاندې شعر د ۸۵ کلن ملا عبدالواحد اخلاص له خولې، چې د خالص بابا له خاصو شاګردانو او مخلصينو څخه دی، را نقل شو چې د حافظې د کمزورتيا له مخې ښايي نيمګړی هم وي.

خالص بابا دا شعر د خپل ځوانيمرګ ورور مولوي محمد هاشم پر وفات ويلی و. دغه مهال د خالص بابا تخلص اورنګی وو.

په غمونو کې لوی غم دی، غم د ورور
په دنيا کې لوی ماتم دی، غم د ورور

چې له سترګو مې د اوښکو رود روان کړو
چې مې زړه قلم قلم کړو، غم د ورور

چې عالم ازاروي په زړه سنګين دی
له فولادو چې محکم دی، غم د ورور

چې مدام د زړه په سريې ګوزار راکړو
اورنګي ته، چې لړم دی، غم د ورور

پای

د علامه اقبال (رح) وینا رشتیا ده، چې وايي:

«اولسونه د شاعر په ضمیر کې زېږي، خو د سیاستوالو په لاس مري» خالص بابا هم له ځایه شاعر و، خو د خپلې ټولنې اړتیا او غوښتنې سیاست غاړې ته ور واچاوه، ګنې دا خو هغه شاعر و، چې د شعر په زور یې هم د خپلواکۍ هوسۍ د بلوسګر ښکاري له منګولو را خپلولای شوه. هغه دا کار د خپل شعر په سحر هم کولای شو، ځکه د هغه په هنر کې چې کومه ښکلا، ځلا او پیاوړتیا وه، هغه له دغو تاوجنو او ویرجنو حالاتو نه څو لسیزې وړاندې دې هنر پوه اولس پېژندلې وه، ددې هنرمېنې ټولنې هر هنر مېن وګړي دده له خولې دده رندي او دده د شعر دا رنګیني اورېدلې وه چې:

ماته مې کاسه شوه په شرابو مسته مځکه شوه
خــــوار شې ای کولاله له دې ماتو کنډولو سره

خالص صاحب که د خپلې خاورې او عقیدې دشمن ته د خپلې تورې ځلا وښوده او پر دشمن یې د خپلې تورې زور ومانه، نو د هغه د شعر ښکلې ملکې لا وختي د هنرمنو زړونو پر هېواد واکمني چلولې ده.

(استاد محمد آصف صمیم)

... خالص د یوه تنظیم مشر و، رهبر و، لیډر و، دده تنظیم له ټولوغوره قوماندانان او جنګیالي لرل، د یوه تنظیم د مشر په توګه خالص وسلې، پیسې او شونتیاوې لـرلې، خو چې یو سهار به راپاڅېدې خالص به دې مخې ته ولاړ و، نه به رهبر و، نه د تنظیم مشر، یو دردمند افغان به دې لیده، یو مجاهد، یو کېوال، چې د تنظیمونو، رهبرانو او هغه مسلط حاکمیت پر وړاندې درېدلی و.

...شاعر نبي خېل پر لیډر او رهبر خالص ډېر بر، ډېر اوچت و، له همدې ځایه وه، چې نبي خېل کله هم هغسې لیډر او رهبر ونه خوت، چې د واک لپاره هېواد او هېوادوال په سرو لمبو واروي.

... لیډر او رهبر خالص به چې نبي خېل شاعر شو، نو د دانو شاوخوا یې ګنې لومې او دامونه هم لیدلی شوای. دا هغه دانې وې، چې په تمه یې لیډران او رهبران په دامونو او لومو کې ښکېل پراته وو.

(شهرت ننګیال)